# دعلمي کادرونو دفرار پړاوونه

## لومړی پړاو

### ( ۱۳۵۷ غویی - ۱۳۵۸ مرغومی )

دافغانستان داوسنی غمیزې دپیل لومړی ورځ د ۱۳۵۷ ل کال دغویي ۷ نیټه ده. پرهمدې ورځ په افغانستان کې جمهوري نظام رنګ او پرځای یې دیوګوند یعنې د " خلکو دموکراتیک ګوند" واکمني رامنځته شوه . څرنګه چې دواک بدلون دیو پوځي عمل په نتیجه کې ترسره شوی و ، نو په همغه پیل کې یې وینه تویه شوه او نوي واکمن دنورو په وینو رنګ تورې سره ارګ ته ننوتل او دواک پر ګدی کښیناستل . له دې سره جوخت - لومړی ذهني او بیا وروسته ، سیاسي پوځي ګډوډي جوړه شوه او ورو ورو یې دهیواد دسیاسي او ټولنیزژوند ټول رګونه ونیول. داموده په افغانستان کې دافکارو له مخې پر متضادو خواوو دټولې د ویشنې نبه ګرم او لومړی پړاو دی . نوي واکمن چې جوړ دولتي جوړښت او امکانات یې ترلاسه کړي وو ، تر هرڅه لومړی پدې لټه کې شول ، چې خپل ذهني ، سیاسي او ددوی په نوموونه ( عقیده یي ) دښمنان وځپي ، نوځکه یې تر هرڅه لومړی له خپلو "مخالفینو" څخه ددولتي دستګاه " تصفیي" ته ملاوتړله . هغه وخت داسې انګیرل کیدله - هر څوک چې دواکمن ګوند غړیتوب ونه لري او یا دهغوی سیاسي تګلارونه مني هغه نوپه اصطلاح " انقلابي" ، " مترقي " او " هیوادپال" نه دی او "ارتجاعي" خصلت لري .ددې بهیر لومړی ګوزار په دولتي دستګاه کې همغو اشخاصو او یا هم علمي کادرونو ته متوجه و چې په دولتي جوړښت کې یې کار کاوه ،خو نه واکمن ګوند سره یې ذهني _ فکري تړاونه درلود . واکمن ګوند همداسې کسانو پسې اور لړونی راواخیست ، ګڼ شمیر یې زنداني کړل . ځینې یې له دولتي او مسلکي پوستونو څخه ګوښه کړل او ځینې یې مهاجرت او فرار ته اړ کړل. ددولتي دستګاه دملکي برخې ترځنګ یې به پوځ کې هم دې چار ته دوام ورکړ او د "خلقي پوځ" دجوړولو تر سرلیک لاندې یې دپوځ بې شمیره روزل

شوي، فني او مسلكي كادرونه ، يا په مرگ محكوم كړل ، يا زندان ته واچول شـول ، يا هم فراري شول او ياهم له خپلو مناسبو پوستونو څخه گوښه كړای شـول . پـه دولت كې پر هغو علمي موسسو هم دا حال راغی چې سياسـت سـره يې چنـدان تړاونه درلود ، يوازې فرهنگي او علمي چارې يې سمبالولې .

په دې واتن كې دافغانستان ډير نامتو علمي كادرونه او ليكوال تر خاورو لانـدې شول. پخواني صدراعظم موسى شفيق ، يوسف ميرنی ، سيلاب ساپی او نور يـې پـه سلگونو بيلگې دي . ددغو زرگونو افغانانو لست چې د ١٣٥٨ ل كال دسنبلې لـه ٢٥ نيټې وروسته خپور شو په هغه كې دوژل شـويو او لادركـو كسـانو لـه نومونـو څخـه څرگنديږي چې گڼ شمېر علمي كادرونه ، پوځي تكړه افسران ، دقوم مخـور او نـور پوه افغانان دژوند له نعمت نه محروم شوي دي .

همدې موده كې يوازې دكابل پوهنتون د ٦٠٠ تنو اسـتادانو لـه جملـې څخـه ٦٥ تنه استادان تلف شوي دي چې دا دپوهنتون داستادانو تقريبـاً ١١ فيصـده كيـږي . يوازې دادبياتو او دبشري علومو له پوهنځی څخه دوكتور شجاعي ، محمد علم ملـه بار ، خانباز تنيوال ، اميرمحمد مومند او خان آباد وزيري دواكمنـو لـه خـوا ونيـول شول او لا درك شول .

څرنگه چې واكمن گوند ته يو روغ دولت او حكومتي امكانات په لاس ورغلـي وو ، نو دوی كولای شول له هغو څخـه دخپلـو موخـو ، فكـري او فزيكـي زورواكـی لپاره هر ډول گټه پورته كړي . پدې پړاو كې فكري اختناق داسې پړاوته رسـيدلی و چې هيچادهيڅ خبرې او نظر څرگندولو حق نـه درلـود. هـره سياسـي او ټولنيزه خبره په بل ډول تعبير يدلای شو ه او ديو شخص يا علمي كادر دزنداني كولـو لپـاره يوه وړه پلمه او خبره هم بس وه . پدې پـړاو كـې ښوونـځي ، پوهنـځي ، علمـي ، توليدي او ټول دولتي مركزونه دواكمن گوند تر كنترول لاندې وو او ټول هيـواد لا دسراسري پاڅون په اورنې ډگرنه وبدل شوی . واكمنو كولای شول ان په كليـوالي سيمو او باندو كې هـم دخپـل ځواک آسـونه وزغلـوي ، لـه ملـي شـتمنيو او لاسـته راوړنوڅخه هم دخپل مقصد لپاره كارواخلي . دراوروسته كلونو پـه انـډول پـه دې واتن كې دولتي جوړښت روغ او سلامت پاتې و څكه چې دكړكيچ دپيل كلونـه وو . په ١٣٥٨ ل كال كې دهيواد ټول استوگن نفوس ١٣٠٥١ زره تنه اټكـل شـوی دی . په دې كې هغه كسان چې دكار لپـاره مسـتعد دي ( ١٥-٥٩) كلـن دي ٦٣٣٣ زره تنه ښودل شوي او داقتصادي چارو او گټې لپاره فعاله ( بشري قوه) ٤٩٥٠ زره تنه اټكـل شوې .په اقتصادي چاروكې دمصروفو فعالو كسانو شمير ٤٥٩١ زره تنه ښودل شـوي

چې له دې جملې څخه په توليدي برخه کې ۴۰۷۳ زره تنه او په غير توليدي برخه کې ۵۱۸ زره تنه ښودل شوی دی . (۱)

دغه راز په ۱۳۵۷ ل کال کې ملي ناخالص محصول چې ګټه ورڅخه پورته شوې ده (۱۵۹،۱) مليارده افغانۍ او توليد شوی داخلي ناخالص محصول ۱۴۲،۹ مليارده افغانۍ و (۲) دیادونې وړده چې په دې وخت کې افغانۍ خپل ارزښت درلود اويو امريکايي ډالر تقريباً په ۵۰ افغانۍ تبادله کيده .

په ۱۳۵۷ ل کال کې هغه ملي عايد چې ګټه ورڅخه پورته شوې ۱۱۱،۷ مليارده افغانۍ ، داخلي توليد شوی عايد ۹۵،۵ مليارده افغانۍ و (۳) په دې کال کې دمالدارۍ محصولات دغوښې له پلوه (۱۹۵) زره ټنه ، دشيدو له پلوه (۷۹۲) زره ټنه، دوړيو له پلوه ۲۲،۷ زره ټنه و (۴) پدې کال کې ددولتي او مختلط سکتور دصنايعو دتوليداتو ارزښت ۱۳۴۳۲،۵ ميليونه افغانۍ و. (۵).

دخصوصي سکتور دصنايعو دتوليداتو ارزښت مجموعاً ۴۱۴۴،۰ ميليونه افغانۍ و دترانسپورت په برخه کې بايد سرې ووايي چې ۲۲،۱ زره عرادې لارۍ، ۱۲،۳ زره بسونه ، (۳۰،۷) زره ګرندي ګاډي او (۹،۵) زره تکسي موټر موجود وو . (۶) .

په ۱۳۵۷ ل کال کې دافغانستان دبهرنۍ سوداګرۍ حجم ۷۴۷ ميليونه ډالره و . له بهر څخه دراوړل شويو شيانو ارزښت ۶۸۱،۴ ميليونه ډالره و . (۷) دنقدي وارداتو ارزښت ۴۲۰ ميليونه ډالره و . (۸)

ددې ارقامو له يادونې څخه مقصد داو چې په ۱۳۵۷- ۱۳۵۸ کلونو کې دولتي دستګاه جوړه پاتې وه او هم لا هيواد له نورې نړۍ څخه په بشپړ ډول بيل شوی نه و . له فکري اختناق ، جبر او نورو ډول ډول ظلمونو سره سره دژوند اقتصادي خواډيره کمزورې نه وه خو ورو ورو دکمزورۍ خواته روانه وه . همدغو امکاناتو واکمنوته ددې وس ورکړی وچې دهيواد په اکثره سيمو کې دخپل ذهني مخالفينو او ياهم دځنګزنو اشخاصو په تيره بيا دتحصيل کړو او علمي کادرونو حرکتونه وڅاري ، يا يې زنداني کړي او يايې پرمرګ محکوم کړي . دهغه وخت واکمنو

(۱) – ګزيده شاخصهای احصائيوی ،دحصائيې وزارت ،دنشراتورياست ،کابل ۱۳۷۰ل کال ،۸ مخ
(۲) – همدا اثر ۹ مخ .
(۳) – همدا اثر ۱۱ مخ .
(۴) – همدا اثر ۲۰ مخ .
(۵) – همدا اثر ۲۷ مخ .
(۶) – همدا اثر ۳۰- ۳۲ مخونه .
(۷) – همدا اثر ۳۵- ۳۶ مخونه .
(۸) – همدا اثر ۴۰ مخ .

ووني او روزنې ته له خپل اندود سره سمه پاملرنه کوله . ځني نـوي ښوونـځي او
علمي مرکزونه هم جوړشول ، خو په ټولو کې دواکمن ګوند تګلاره عملي کيدله .
په ۱۳۵۷ ل کال کې دټول هيـواد پـه کچـه دښوونځيـو ، دسـواد دزده کـړو او
دلوړوزده کړو دموسسو شومره والی په لاندې ډول و :

| | |
|---|---|
| دښوونځيو شمير : | ۳۸۴۳ |
| له هغو څخه : | |
| لومړني ښوونځي – | ۳۵۳۰ |
| منځني ښوونځي – ليسې | ۳۱۳ |
| دزده کوونکو شمير | ۱۰۳۴ زره تنه |
| له دې څخه : | |
| په لومړنيو ښوونځيو کې | ۹۴۲ زره تنه |
| منځنيو ښوونځيو- ليسو کې | ۹۲ زره تنه |
| دفارغانو شمير | ۵۲،۳ زره تنه |
| له دې څخه : | |
| لومړني ښوونځي : | ۳۹،۸ زره تنه |
| منځني ښوونځي – ليسې : | ۱۲،۵ زره تنه |
| دښوونکو شمير : | ۳۵،۰ زره تنه |
| پدې کې دښځينه ښوونکو شمير | ۵،۸ زره تنه |
| دسواد دزده کړې کورسونه | ۱۵،۷ زره |
| دکورسونو شاملين | ۵٦۲،۷ زره تنه |
| دفارغانو شمير | ۱۷،۸ زره تنه |
| دښوونکو او سوپروايزرانو شمير | ۱۳،۸ زره تنه |
| دلوړو زده کړو شومره والی : | |
| دلوړو زده کړودموسسو شمير | ۳ – |
| دپوهنځيو شمير | ۱۸ – |
| دټولو محصلينو شمير – | ۴۱،۳ زره تنه |
| د شاملانو شمير | ۴،۷ زره تنه |
| دفارغانو شمير | ۱۵۵۳ تنه |
| دټولو استادانو شمير | ۹۹۲ تنه |
| له دې جملې نه بهرنيان | ۱۷۵۰ تنه |
| دمنځنيو مسلکي او حرفه يي ښوونځيو شمير | ۴۴ |

| | |
|---|---|
| دمحصلينو شمير | ۱۲۰،۷ زره تنه |
| دشاملانو شمير | ۵،۴ زره تنه |
| دفارغانو شمير | ۱۵۹۵ تنه |
| دښوونکو شمير | ۹۹۸ تنه |
| له دې جملې ښځه بهرني ښوونکي ۲۰ تنه | |
| دتخنيکومونو شمير | ۲ |
| دمحصلينو شمير | ۱۷۰٦ تنه |
| دلومړي کال محصلينو شمير | ۴۵۳ تنه |
| دفارغانو شمير | ۲۰۴ تنه |
| داستادانو شمير | ۱۹۰ تنه |
| له دې جملې نه بهرنيان | ۸۵۰ تنه |
| دښوونکي دروزنې دموسسو شمير | ۱۴ |
| دټول محصلينو شمير | ٦،۴ زره تنه |
| دلومړي کال شاملان | ۲،۷ زره تنه |
| دفارغانو شمير | ۲۴٦۱ تنه |
| داستادانو شمير | ۳۷۰ تنه (۱) |

په دې واټن کې لکه دټولنې دنورو برخو په څير په علمي او کلتوري مرکزونو کې هم سخت فکري اختناق او ايډيولوژيکه زوړکې موجوده وه . هغه کسان چې ديو انډې په ځانګړي ډول دملي او اسلامي اند ښتنان وو ، تر بل چا ځخه دزياتې ويرې احساس کاوه . هغه وشوه چې په روزنيزو او تحصيلي موسسو کې په نصاب کې بدلون راوستل شي . د سياست په نوم يو مضمون په درسي نصاب کې ځاى کړاى شو او لږ تر لږه دورځې يو درسي ساعت د هرټولګي په درسي نصاب کې ځاى شو ، دزده کوونکو او محصلينو ددرسي پروګرام دياداو برخه دې مضمون او ددې په څنګ کې ګڼو مارشونو او سياسي غونډو ونيوله . په درسي چارو او نورو برخو کې دګوندي لومړنيو سازمانونو لاسوهنه او ټولواکي هم ددې سبب شوه چې واکمن ګوند او دعلمي کادرونو ترمنځ واټن تضاد او دښمنى امکانات برابر شي . واکمنو هم دخپلې ايډيو لوژی په وړاندې هيڅوک او هيڅ شى نه شو زغملاى ، ځکه خو به يې غوڅ عمل ترسره کاوه .

دهمدې وژنو ، ترټنو ، زندۍ کولو او فکري بحران او فشار له امله ګڼ شمير

---

(۱) - گزيده شاخصهاى احصائيوى درسال ۱۳۷۰، داحصائيې وزارت، کابل،۵۵-۵۸ مخونه.

هیوادوال دخپل ټاټوبي پرېښودلو ته مجبور شول . یوازې د ۱۳۵۷ ل کال په بهیر کې دپاکستان درادیو په وینا ۵۰ زره افغانان پاکستان ته مهاجر شوي وو . د ۱۳۵۸ ل کال تر مرغومي پورې په اټکلي ډول ددې کسانو شمیر تر ۱۴۰ زرو تنو پورې ورسیده . پدې شمیر کې دعامو ولسي ، مذهبي کسانو او دهغوی دکورنیو دځینو غړو په ګډون دهیواد ګڼ شمیر علمي کادرونه او تحصیل کړي اشخاص هم شامل وو. دزیاتو علمي او پوهو کسانو اټکل څکه کیدای شي چې تر هر چا لومړی دوی ته زیات ګواښ او خطر متوجه و . که دافغانستان دلوستي قشر منځنی کچ په پام کې ونیول شي یانې په سلوکې ( ۵-۷) تنو پورې ، نو په ۱۴۰ زروتنو کې به اټکل لس زره تنه لوستي کسان په دې موده کې پاکستان ته وراوښتي وي او که بیا له هرو لسولوستو کسانو څخه یو تن دلوړو زده کړو خاوند وګڼل شي نو په دې بهیر کې به اټکل یوززتنه دلوړو زده کړو څښتنان دهیواد پرېښودو ته اړ شوي وي . په پوځ کې دبغاوتونو ، په دولتي دستګاه کې دنارضایتیو او پخپله دواکمنو دزورواکیو له امله به تردې هم زیات تحصیل کړي اشخاص دهیواد په دننه کې ، زنداني ، وژل شوي او یا هم تري تم شوي وي . که دکابل پوهنتون دتلف شویو استادانو او علمي کادرونو احصائیه دیو منځني حد او معیار په توګه په پام کې ونیول شي نو لیر تر لږه به هر علمي مرکز په سلوکې لسمه برخه علمي پرسونل له لاسه ورکړی وي . ددې ترڅنګ په دولتي جوړښت کې له خپلو مناسبوپوستونو څخه دمسلکي کادرونو ګوښه کول او یاد هغو دواک سلبول او دهغو پرځای دنویو کسانو ټاکل هغه بل ناوړه عمل و چې دهیواد مسلکي کادرونو ته یې دفرار لارې چارې برابرې کړې . او ځیني یې له خپل مسلک څخه لرې کړل .

کله چې ددې پېر دواکمنو په وړاندې د مختلفو مذهبي ډلګیو په مشرۍ وسلواله مبارزه پیل شوه ، نو هغوی هم دعلمي کادرونو په ځانګړي ډول دښوونکو په وژلو ، سپکولو او دښوونځیو په ړنګولو او سوځولو صرفه ونه کړه ، ګڼ شمیر ښوونکي یې ووژل او ځینې نورېې له کلیو نه ښارونو او یا هم بهر ته فرار کړل .

( ۱۳۵۷- ۱۳۵۸ ش ) کلونه واټن په هیواد کې دډلهییزو وژنو ، زنداني کولو او " فکري تصفیې" او په ډله ییز ډول په هیواد کې دعلمي کادرونو دوژنې او فرار دپیل موده ده .

# دویم پړاو

## (۱۳۵۸ مرغومی - ۱۳٦۵ غویی ) .

د ۱۳۵۸ ل کال دمرغومي پرړ٦ نیټه پیل شوې غمیزه دنویو واکمنو پـه نومونـه " تکاملي اوبشپړتیایي" پړاوته ورسیده . پخواني شـوروي اتحـاد پـر افغانسـتان مستقیم پوځي یرغل وکړ او خپل لاسپوځي یې دکابل پـر واک واکمـن کـړل . لـه دې سـره جوخت دپردیو او دهغو دکورنیوپلویانو په وړاندې سراسري ملي او اسلامي پـاڅون پیل شو .ورسره له هیواده دډله ییز مهاجرت لړۍ په ډیـره چټکـۍ سـره پیـل شـوه . روسانو پر لویو ښارونو خپل واک ټینګ کړ ، خـو پـر کلیوالـو سـیمو لاسبري نشـول ، ځکه نو په لومړی سر کې په کلیوالو سیمو، له ښارنه په لرې پرتو او غرنیو سیمو کـې توده جګړه پیل شوه . دجګړې په ترڅ کـې بـې شـمیره کورونـه وران او پـه لکونـو افغانان مهاجرت او مقاومت ته اړ شول ، هغه ښوونځي ، روزنـځي او دزده کـړو نـور مرکزونه چې له لویو ښارونو نه بهر وو یا دجګړو په ترڅ کې تباه شول او یا هـم دنویـو واکمنو دمخالفینو له خوا ددولتي ملکیت تر پلمـې لانـدې ړنـګ ، چـور او وسـیځل شول . نویو واکمنو دکورونو په ړنګولو او بمبارۍ او مخالفینو د ښوونځیو پـه ړنګولـو کې خپل ټول وس چار پرکار واچوه .

دیوې احصائیې له مخې تر ۱۹۸٦ م کال پورې یوازې پاکستان او ایـران تـه پـه ترتیب سره (۲،۷۰۰،۰۰۰) او (۲،۰۰۰،۰۰۰) تنه افغانان مهاجر شوي دي . (۱) او نـور ځینو نورو هیوادونو ته تللي دي . دا تقریباً پنځه میلیونه افغانان دي . که چیرې پـه دې افغانانو کې موږ دافغانستان دهغه وخت دلوستي قشر هغه ډیره کمه کچه هم په پام کې ونیسو نو لږ تر لږه به دپنځه میلیونو مهاجرو په منځ کې ( ۲۵۰۰۰۰) تنه

---

(1) Afghan Refugee Bulletin, UNHCR , February 1999 , Page 13

لوستي افغانان شامل وي . له دې رقم څخه دلوړو زده کړو دخاوندانو شمير هم په اټکليز ډول څرګنديدای شي . پدې وخت کې نه يوازې داچې دپرديو اودهغو دملګرو په وړاندې په کليوالي سيمو کې زيات غبرګون موجود و ، بلکې دښارونو په لويو فرهنګي او اکاډميکو مرکزونو کې هم دهغو پرضد څرګندې او ناڅرګندې هڅې موجودې وې . روڼ اندو او هيواد پالو تحصيل کړو افغانانودپرديو سياسي او پوځي واکمني نه شوه زغملای نو ځکه خو يې دهغوی پر ضد يا له جهادي ليکو سره اړيکې ټينګول او يا خپلو ملي ولولو په ځاني او ډله ييز ډول مبارزوته هڅول . روسانو او نو واکمنو هم په ډير دقت سره دهغوی هر ډول عمل څاره او هغوی يې په ډيره زورواکۍ سره له منځه وړل . پدې پړاو کې هم دهيواد بې شميره تحصيل کړي اشخاص دزندان تورو کوټو ته دننه کړای شول ، کې شمير يې له خپلو مسلکي دندو څخه ګوښه شول او يو زيات شمير يې مهاجرت ته اړشول .

په دې دوره کې بل کار داوشو چې دهيواد تحصيل کړی قشر پر دوومتضادو لارو وويشل شو ، يو هغه چې ددولت په چوکاټ کې پاتې شو او له نوي نظام سره يې فکري او رواني اړخ ولګولای شو او بل هغه چې دا تګلاره يې غندله او دهغې پرضد يې مباره کوله . پدې وخت کې دافغانستان دتحصيل کړي قشر زياته فکري انرژي په ګړنې او ليکنې ډول دمخالفو فکري تګلورو په تبليغ او ترويج کې مصرفيدله ، په حقيقت کې سياسي فضا پر مسلکي تشبث او پلټنو خپله خپسه کښينولې وه ، او د اکثرو مسلکي او علمي کادرونو انرژي له دغو دوو لورونه په يوه کې مصرفيدله ، سره له دې چې په عام ډول ټول هيواد کې جګړه روانه وه خو بيا هم واکمنو هڅه کوله چې په ښارونو کې ژوند په نورماله بڼه دوام وومومي ، ځکه خو يې اکثره ښوونځي ، پوهنځي ، روزنيز او علمي مرکزونه فعال ساتلي وو او په ځينو برخو کې يې دپراختيا هڅه کوله . په ښارونو کې ددولت دستګاه تقريبا روغه پاتې وه . په ۱۳۶۰ ل کال کې دټول دولت په ملکي برخه کې دمامورينو شمير (۸۰۹۸۰) تنو او داجيرانو شمير ۹۱۰۱۲ تنو ته رسيده (۱) . چې دملکي برخې دټولو کارکوونکيو شمير ۱۷۱۹۹۲ تنو ته رسيده .

په ۱۳۶۱ ل کال کې يوازې دکابل ښار دلومړنيو ښوونځيو دزده کوونکيو شمير ۱۷۷۷۷۳ تنه و چې د ۵۷۲۰ تنو ښوونکو له خوا ورته درس ورکول کيده . دمنځنيو

---

(۱) – حقايق تاريخی وارقام احصائيوی دربارهٔ کابل ،داحصائيې مرکزي اداره،۱۳۶۲ کال ، ۹۳مخ .

ښوونځيو دزده کوونکيو شمير ۸۸۶۰۶ تنه و چې ددرس چارې يې د ۳۱۱۶ تنو ښوونکو له خوا پرمخ وړل کيدې . (۱)

په همدې کال يوازې دهيواد دسړو سيمو په ښوونځيو کې ۳۵۸۹۲ تنه زده کوونکي لومړي ټولګي ته جذب شوي وو.(۲)

په ۱۳۵۹ ل کال کې دکابل پوهنتون د محصلينو شميره ۸۸۴۲ تنه وه چې ۳۴۵۲ تنه نوي شامل شوي وو او ۱۹۸ تنه يې فارغان درلودل .

کابل پوليتخنيک ټول ۱۶۳۹ تنه محصلين درلودل ، ۱۳۶۱ شاملين او ۲۳۶ تنه فارغان.

دطب دعالي زده کړو انستيتوت ، دکابل دطب انستيتوت په ګډون : ۱۹۰۵ تنه شاګردان ، ۵۱۳ تنه شاملين او ۵۲ تنه فارغان درلودل .

په ۱۳۶۰ ل کال کې دکابل پوهنتون دټولو محصلينو شمير ۷۲۹۷ تنه ، دنويو شاملينو ۲۰۵۵ تنه او دفارغانو شمير يې ۱۲۳۶ تنه و ، دکابل پوليتخنيک انستيتوت په همدې کال ، ۱۷۷۶ تنه شاګردان ، ۴۰۱ تنه نوي شاملين او ۲۳۴ تنه فارغان درلودل . دطب دلوړو زده کړو اوکابل طب انستيتوت ۲۰۶۲ تنه شاګردان درلودل ، ۱۳۶۵ تنه يې نوي شاملين او ۸۱ تنه يې فارغان درلودل . (۳)

ديو بل رقم له مخې په مجموعي ډول په ۱۳۶۱ ل کال کې دلوړو زده کړو ددريو موسسو( کابل پوهنتون ، کابل پوليتخنيک ، او دننګرهار پوهنتون دټول محصلينو شمير ( ۱۰۹۳۶) تنه چې له هغې جملې نه ( ۴۱۴۵) تنه نوي محصلين وو . همدارنګه دلوړو زده کړو ( داداري و حسابداری او دکرنې په موسسه کې (۷۵۲) تنه محصلين ووچې له هغې جملې څخه ( ۲۴۹) تنه نوي شاملان وو. دتخنيکم دمحصلينو شمير ( ۱۰۳۲) تنه چې له هغې جملې نه ( ۴۶۸) تنه نوي محصلين وو او همدارنګه دتخنيکي حرفه يي لومړي نمبر ښوونځي شاملان (۷۷) تنه وو . (۴)

۱۳۵۸-۱۳۶۵ کلونه په هيواد کې له ګرمې جګړې سره سره په ښارونو په تيره بيا په لويو ښارونو کې دښوونې او روزنې بهير دروڼ شوی نه و ، البته پر ټولو فرهنګي، علمي او روزنيز مرکزونو دواکمنو دفکري تګلارې سيوری خپور شوی و . دټولنپوهنې په نامه يو مضمون په هر ټولګي کې جبري و ، ګوندي سازمانونو

---

(۱) - همدغه اثر ، ۶۲-۶۳ مخونه .

(۲) - دافغانستان کالنی ، ۱۳۶۱ ل کال ، ۶۱۲ مخ .

(۳) - حقايق تاريخي و ارقام احصائيوي درباره‌ء کابل ، ۶۴ مخ .

(۴) - دافغانستان کالنی ، کابل ۱۳۶۱ل کال ، ۷۳۰ مخ .

دعلمي مرکزونو په اداري او علمي چارو کې دلاسوهنې او دکارونو بدلون پوره واک درلود .

ګوندي غونډو ، مارشونو او میتینګونو دروزنیزو ، ښوونیزو او فرهنګي مرکزونو زيات وخت اخلالاوه ، واکمن ګوند ته ژمن اشخاص که څه هم پوره علمي واک يې نه درلود ، دعملي مرکزونو داداري چارو لپاره ګمارل کيدل . دلوړوزده کړو، پوهنتونونو او بهر ته په تحصيلي بورسونو کې دټګ په مساله کې واکمنی سره دتړاو او نړيوالي معيار په پوره ډول په پام کې نيول کيده .

دښوونې او روزنې وزارت دلوړ کچ ديو کار کوونکي دوينا له مخې د ۱۳۵۷-۱۳۶۵ کلونو په واټن کې تر (۴۵) زرولنو زيات افغانان دوخت له حکومت سره ددوستو هيوادونو په ځانګړي ډول " شوروي اتحاد" ته تللي دي . ددې کسانو ديادوړ شمير له تحصيل وروسته دخوکلونو په بهير کې بيرته هيواد ته راستون شو او ځيني يې لاپه لوړو ، مهمو او حساسو دولتي پوستونو کې وګمارل شول ، خو پدې وخت کې هم يو شمير هغه افغانان چې بهر ته دلوړو زده کړو لپاره تللي وو بيرته راستانه نه شول .

له هيواد څخه دعلمي کادرونو په مهاجرت کې کمی رانغی او هم لا په دننه کې هغه لاملونه چې دعلمي کادرونو دفرار سبب کيدل پرځای وو . دبهرنيو يرغلګرو مستقيم واک او فشار ، سياسي او فکري اختناق ، دژوند نه تضمين ، دمسلکي معيارې ارزښتي ، وژنه ، ترور او زنداني کول هغه عوامل وو چې دمسلکي کادرونو دوتلو لاره يې برابروله . پدې واټن کې دفرار ستر لاملونه سياسي ، فکري او عقيده-يي وو . اقتصادي ستونزو پکې دومره اغيزنه درلود .

په دې بهير کې دولت هر کال دلوړو زده کړو په برخه کې په بهر کې دتحصيل کوونکو افغانانو له شمير پرته په منځني ډول ۲۰۰۰ تنه فارغان تولنې ته وړاندې کول . خوله هيواد څخه دتلونکيوهغو افغانانو شمير په دقيق ډول څرګنيد نه دی چې لوړې زده کړې يې لرلې.پوازې دکابل پوهنتون ۱۰۰ تنو څخه زياتو استادانو په هغه وخت کې خپله دنده خوشې کړې ده .

له دولتي اختناق ، جبر او پردي ښکيلاک پرته ددولت مخالفينو هم دهيواد په دننه کې دعلمي کادرونو په ځانګړي ډول دښوونکيو پر وژنې صرفه ونه کړه .

" پوازې دمعارف په برخه کې له ( ۱۳۵۷-۱۳۶۶) پورې ۲۰۰۰ څخه زيات ښوونکي وژل شوي دي (۱) . چې اکثره يې دمخالفو کسانو له خوا وژل شوي دي .

(۱) - پوهنمل دوکتور نجيب الله فايز، اجتماعي علوم مجله ، کابل پوهنتون، ۱۳۶۸ل کال ۱۹۱-۱۹۸ مخونه .

بسم الله الرحمن الرحيم

# سریزه

( ۱۳۵۷- ۱۳۷۷ش ) کلونه دافغانستان دټول تاریخ په تیره بیا دمعاصر تاریخ تر ټولو بد، ستونزمن ، کرکجن ، تاوجن ، غمجن ، زړه بوږنوونکي او خواشینوونکي کلونه دي . په همدې کلونو کې ډول ډول ناتارونو او غمیزودافغانانو دژوند او دنوي عصري راټوکیدلي تمدن غوټۍ ومروړلې او دخوشالوونکو هیلو ستوني یې څپیټه کړل . د ۱۳۵۷ ل کال ددویمې میاشتې لومړۍ لسیزه وه چې پر افغان ولس یو نابېړ ناتار راپریووت . د ۱۳۵۸ ل کال د مرغومي پر شپږمه په بهرني یرغل سره دا ناتار ثوي او بشپړتیایي پړاوته ورسید . د ۱۳۶۵ ل کال دغوايي پر ۱۴ دناورین په متن کې یو ډول ظاهري بدلون ته اړتیا پیښه شوه . د ۱۳۷۱ ل کال دغوايي پر اتمې ددې لویې غمیزې دپیل له ورځې یوه ورځ وروسته په سپین رنګ کې یو بل تور ناتار زموږ پر اسکیرلي ولس وتپل شو . څلورنیمو کلونو دې غمیزې دوام وکړ او څه چې له تیرو غمیزو خوندي او جوړپاتې وو یو په بل پسې لوټ او تالان شول او هر څه یې دنیستۍ پر سیند لاهو کړل .

دې پرله پسې غمیزو همداسې غزونې وکړې او هرې خواته یې دکرکې ، ورانۍ او وحشت اورونه وشیندل .

افغانستان او افغان ولس ددې غمیزو او ناتارونو په بهیر کې دومره وکړیدل چې دېرڅه یې له لاسه ورکړل . مادي شتمنۍ تباه شوې ، تر (۵۰۰) زیات پلونه تباه شول. په زرګونو کیلومتره پوخ سړک تباه شو ، تر ۲۰۰۰ زیاتې لویې او ورې فابریکې له منځه لاړې ۳۵۰۰ ښوونځي ړنګ او وسیځل شول ؛ ۷ میلیونه خلکو دلوستوال کیدو مخه ونیول شوه ؛ ٦ میلیونه کسان مهاجرت ته اړشول .دمرکز په ګډون دهیواد تر ۳۰ زیات لوی ښارونه ځینې په نیمه ځینې په بشپړ ډول تباه شول ؛ یو نیم میلیون کسان ووژل شول ، یونیم میلیون ، ټپي ، معیوب اومعلول شول ؛ په لسګونو لوی ، په

غوره بیلگه یې په همدې وخت کې دلغمان ولایت دالینګار په ولسوالۍ کې د (۹) تنو ښوونکیو ډله ییزه وژنه ده چې دیو جهادي تنظیم له خوا وشوه . داښوونکي په ډیر دردوونکي ډول دغره په یوه سمڅه کې وژل شوي وو او له درې میاشتو وروسته یې خپلوانو سرې پیدا کړل .

همداراز په همدې واټن کې ۱۸۵۰ ښوونځي او دهغو دوه سوه زره میزونه او څوکۍ ړنګ او سیځل شوي دي .

ښوونځیو کې د ماشومانو دداخلولو په شمیر کې په سلو کې ۴۰ کمې راغلی دی . دغه راز په همدې وخت کې ۱۱۴ روغتیایي مرکزونه او ۲۸ روغتونونه هم تخریب شوي دي . (۱)

---

(۱) - همغه اثر

# دريم پړاو

## ( ۱۳۶۵ غويي - ۱۳۷۱ غويي )

پر ۱۳۶۵ ل کال په افغانستان کې نړيوالو فشارونو او په افغانستان کې دننه ګرمو وسله والو جګړو بهرني يرغلګر دې ته اړ کړل چې دکابل درژيم په مشرتابه کې بدلون راولي او خپله ورو ورو له افغانستان څخه پښې سپکې کړي . د ۱۳۶۵ ل کال دغويي پر ۱۴ نيټه دابدلون راوستل شو . له نوي بدلون سره په دولتي ادارو او نورو علمي مرکزونو کې دهغه اختناق او فشار بار ورو ورو کم شو چې له اتو کلونو راهيسې هلته واکمن و . ددې فشار دکميدو يواساسي علت داو چې بهرني يرغلګر او کورني واکمن لږ شان پردې پوه شوي وو چې يوازې دبرچې په څوکه دخلکو دافکارو ، عقايدو او نظريو وژنه امکان نه لري.دحکومت زياته پاملرنه دمخالفينو له خوا فزيکي خطر او جګړې ته متوجه وه ، ددولت پر ضد ګرنې او ان ليکنې تبليغ ته دومره په قهرجنه سترګه نه کتل کيدل. په ځانګړي ډول په وروستيو کلونو کې . ددولت فزيکي ځواک ورځ په ورځ کمزوری کېده . جګړه له کليو ، غرونو او بانډو څخه دلويو ښارونو تر څنډو او پر هغو باندې دمستقيم فشار راوستلو تر بريده راورسيده او ان ځينې لوی ښارونه هم دمخالفينو لاسته ورغلل . نو په دغسې يو حالت کې واکمن مجبورو وو چې ديو ډول دموکراسۍ او آزادۍ تمثيل وکړي ، ان تر دې چې ځينو ته دربنتيني وګرواکۍ په بڼه ښکاريدله ، دبيان او قلم آزادي په وروستيو وختونو کې زياته شوه ، هغه فشار چې پخوا دخارنې ، نيونې ، وژنې او زنداني کولو په بڼه کې موجود و ، ورو ورو خپل زور او ځواک بايلود ، خو بيا هم په دې پيرکې له هيواده دمسلکي کادرونو او نورو افغانانو تيښتې لړۍ بنده نه شوه. لويو ښارونو ، لکه‌جلال آباد ، کندهار او نورو کې د درنو جګړو پيل او دوام او همدارنګه ددوارو غاړو له خوا دډيرو درنو ، وژونکو او عصري وسلو استعمال ګڼ

شمیر افغانان مهاجرت ته اړ کړل . ددې پراو پـه لومړنیـو وختونـو کـې دسیاسـي او عقیده یې اختناق له کبله یو شمیر علمي کادرونه یاووژل شول ، یا زنداني شـول او یا هم فراري شول . په وروستیو وختونو کې دښکاره وژنو او زنداني کولو شمیر لـږ او وروسته بیا بیخي ناڅرګند شو ، خو بیا هـم دعلمـي او مسـلکي کـادرونو دمـهاجرت لړۍ بنده نه شوه .ددې پېر په وروستیو څوکلونو (دریوکلونو) کې اکثره خلک پـردې باوري شول چې دررژیم پښې دټینګې نه دي ، نوهرچاپه ځانګړي ډول تحصیل کـړو اشخاصو هڅه کوله چې په یوه نه یو ډول ځانته له هیـواده دوتلـو لار پیـدا کـړي . پدې وخت کې ګڼ شمېر هغه کسان له هیواده ووتل چې په لویدیـځو هیـوادو کـې یې زده کړه کړې وه . له رواني ، ذهني او مسلکي پلوه ورته ډاډ ښکاره کیـده چـې که له هیواده بهر تـه لاړ شـي نـو ژوندیـې تضمـین او خروبیـدای شـي . دمسـلکي کادرونو دفرار بل اساسي لامل داهم و چې پدې وخت کـې ددولـت اقتصـاد ورځ په ورځ کمزوری کېده . واکمنو زیات لګښت د جګړو په برخه کې کاوه .

دمسلکي او علمي کادرونو معاش ددې جوګه نه و چې نور دې دوی دپخوا پـه شان له هغه څخه دخپل ژوند چارې سمبال او خروبې کـړي . عمومـي بـې بـاوري هم بل لامل و . ان په واکمن ګوند او حکومت کې ډېر داسـې مسـلکي کادرونـه او اشخاص وو چې په همدې پېر کې یې خپلـې کورنـۍ هـم بـهر تـه لېږدولـې وې او پخپله هم دوتلو په حال کې وو . دا ډول اشخاصو ان ددولت له رسمي امکاناتو نـه په ګټې اخیستنې سره ځانونه بهرنیو هیوادونو ته وایستل . ځینې هغه اشخاص چـې ددولت له خوا بهرنیو هیوادونو په ځانګړي ډول پخواني شوروي اتحاد تـه لیږلـې وو ، دتحصیل دوره یې پای ته رسیدلې وه هغوی هم اکثرو هېواد ته لـه راتـګ نـه ډډه وکړه او یو شمېر نورو چې هلته یې تحصیل کړی و هغوی هـم پـدې لـټه کـې شول چې له یوې لارې بیرته ځان همغو تولنو او هېوادونو ته ورسـوي ، نـو پـه دې ډول په دې وخت کې هم دعامو افغانانو او هم دتحصیل کړو افغانـانو دفـرار لـړۍ کمزورې نه بلکې لا ګرمه شوه . دملګرو ملتو دمهاجرینو دیـوې رسـمي شـمېرنې لـه مخـې پـه ۱۳٦٥ل = ۱۹۸٦ ع کـال کـې دافغانسـتان دتولـو مـهاجرینو شـمیره (۴،۷۰٦،۰۰۰) تنه وه په ۱۳۷۰ ل = ۱۹۹۱ ع کـال کـې داشـمیره (٦،۱۹۷،۰۰۰ تنو) تـه ورسیده ، (۱) دمهاجرینو دشومره والي په اړه به وروسته یو جدول وګورئ .

یوازې له کابل پوهنتون نه پدې موده کـې اتکـل (۱۰۰) تنـو پـه شـاوخوا کـې استادان مهاجر شوي دي . همدارنګه بل هر علمي او فرهنګي مرکز هم دومره

---

(1) Afghan Refugee Bulletin, UNHCR , February 1999 , Page 13

تلفات ورکړي دي .

دځينو علمي کادرونو ځايونه نويو کادرونو ډک کړې ، خو نه په هغه کيفيت -او دځينو لا ځايونه تش پاتې شول . پدې وخت کې په پوځ کې په زرګونو مسلکي کادرونه ، دکوټاوو او اړو دوړ په نامه له دندو لرې کړای شوي دي ، بې شمېره وژل شوي او ځينې يې فراري شوي دي . خو له دې ټولو بدمرغيو،فرارونو، جګړو ، وژنو ، تلفاتو او ورانيو سره سره بيا هم په ټوليز ډول ددولت اډانه او چوکاټ تر زياته حده روغ پاتې و . هغه زيرمې چې پدې وخت کې له حکومت سره پاتې وې په ځانګړي ډول په پوځي برخه کې که چيرې ديو رغنده ملي حکومت لاسته ورغلي وای افغانستان به له پوځي پلوه که له ځينو ګاونډيو برلاسی نه وای نو کمزوری خو به په هيڅ وجه نه و . دشپږو لسيزودبيلا بيلو حکومتونو دآباديو او لاسته راوړنو اکثره شتمني په لويو ښارونو کې اړوله شوې وه . ددې وخت دحکومت ارقام او جوړښت ښيي چې په هغه وخت کې افغانستان دايډيالوژۍ له پلوه که دهر ډول حکومت درلودونکی ... تشکيل يې درلود .

" په ۱۳٦۸ ل کال کې له پوځي تشکيلاتو پرته ددولت دټولو کارکوونکيو شمير (۱٦۸،۹) زرو ، په ۱۳٦۹ ل کال کې (۱۸۸،۹) زرو او په ۱۳۷۰ کال کې (۱۹٦،۱) زرو تنو ته رسېده . په ۱۳٦۹ ل کال کې هغه ملي ناخالصه محصول چې ګټه ورڅخه اخيستل شوې (۱۵٦،۸) ملیارده افغانۍ او په ۱۳۷۰ ل کال (۳، ۱۴۴) ملیارده افغانۍ ارزيابي شوې و . په همدې دووکلونو کې توليد شوی داخلي ناخالصه محصول په ترتيب سره (۱۱۴،٦) او (۱۱۴،۱) ملیارده افغانۍ ښودل شوی دی . په۱۳٦۹ ل کال کې هغه ملي عايد چې ګټه ورڅخه اخيستل شوې (۱۱٦،۲) ملیارده افغانۍ ښودل شوی او په ۱۳۷۰ ل کال کې (۱۰۴،۱) ملیارده افغانۍ ښودل شوی دی .

۴. توليد شوی داخلي عايد

په همدې دوو کلونو کې په ترتيب سره (۷۴،۵) او (۷۳،۹) ملیارده افغانۍ ښودل شوی دی . دبلاعوضو مرستو له پلوه دواردراتو اندازه په ۱۳٦۷ ل کال (۲۰۹،۴) ميليونه ، په ۱۳٦۹ل کال کې (۲۰۴،۴) ميلونه او په ۱۳۷۰ل کال کې(۱۷۸،۶) ميليونه ډالره ښودل شوی دی . دهيواد په پرمختيايي پروژوکې پانګه اچونه په ۱۳٦۹ ل کال کې (۵۳،۰) ملیارده افغانۍ ښودل شوی او په ۱۳۷۰ کې (۴۷۲) ارزيابي شوې ده . په ٦۹_ ۱۳۷۰ کلونو کې ددولتي او مختلط سکتور دفعالو توليدي موسسو شمير په ۱۳٦۹ کې ٦۹۴ ښودل شوی او په ۱۳۷۰ کې ۷۱۷ ارزيابي شوی دی .

دهمدې سکتور دتولیداتو ارزښت په ۱۳۶۹ کې (۱۳۵۶۴،۵) میلیونه افغانۍ ښودل شوی او په ۱۳۷۰ ل کال کې (۲۱۴۹،۳۱) میلیونه ارزیابي شوی دی .

دشیانو دخرڅلاو ددوران ارزښت په ۱۳۶۹ کې ( ۵۸۴۳۳) میلیونه افغانۍ و اوپه ۱۳۷۰ کې (۴۵۲۶۲) میلیونه افغانۍ ښودل شوی دی .

په ۱۳۶۸ ل کال کې دبهرنۍ سوداګرۍ حجم (۹۱۷) میلیونه او په ۱۳۶۹ ل کال کې (۵۸۹) میلیونه ډالره ښودل شوی دی .

له بهر څخه دشیانو دواردولو ارزښت په ۱۳۶۹ ل کال کې (۹۲۶،۵) او په ۱۳۷۰ کې (۷۴۲،۵) میلیونه ډالره ښودل شوی دي .دهېواد دصادراتو ارزښت په ۱۳۶۹ ل کال کې (۲۱۱) میلیونه ډالره او په ۱۳۷۰ل کال کې ۲۹۰،۵) میلیونه ډالره ګڼل شوی دی . دنغدي وارداتو ارزښت په ۱۳۶۹ ل کې (۶۴۸،۷) میلیونه ډالره او ۱۳۷۰ کې (۶۵۲،۶) ګڼل شوی دی .

په ۱۳۶۸ –۱۳۶۹– ۱۳۷۰ کلونو کې دیو امریکایي ډالر په مقابل کې دافغانۍ رسمي او دولتي نرخ (۵۶،۶) افغانۍ و. خو دکابل په آزاد بازار کې په ترتیب سره یوامریکایي ډالر (۵۲۶،۲۳)، (۸۵۵،۸۴) او ( ۱۵۱۹،۷۲) افغانۍ تبادله کیده(۱) .

په ۱۳۶۹ل کال کې دولت (۱۴۴۳۶۱) تنه نارینه کارکوونکي او (۴۴۴۹۱) تنه ښځینه کارکوونکي درلودل (۲)

یوزیات شمېر کسان چې ددولت اکثره کارکوونکي هم پکې شامل و په یوه اتحادیه کې چې د ( امکا) په نامه یادېدله شامل شوي وو . دا شمېر مجموعاً (۳۰۰۰۰۰) تنوته رسیده چې له دې جملې څخه (۹۲۷) تنو ددوکتور ، (۱۵۹۲) تنه دماستري ، (۱۲۷۹۵) تنو دلیسانس دپلومونه درلودل ، ( ۳۳۸۹۸) تنه دابتدایي ، (۳۴۲۷۴) تنه دخصوصي زده کړو خاوندان وو ، او (۱۳۵۷۱۲) تنه نالوستي وو. ( ۳)

په فرهنګي برخه کې ددې پراو په ۱۳۶۶ ل کال کې دسواد دزده کړې په برخه کې کورسونه فعال وو چې دشاملانو شمېر یې (۴۵۳) تنوته رسېده او په منځنی ډول هرکال (۱۳۸) زره تنه ترې فارغېدل . په همدې کال کې دښوونځیو شمیر (۱۳۰۸) ته رسیده ، پداسې حال کې چې په ۱۳۵۷ کال کې ټول ( ۳۸۴۳) ښوونځي فعال وو. په ۱۳۶۶ ل کال کې دعمومي زده کړو دښوونځیو دزده کوونکیو شمیر د (۷۷۶) زرو تنو په شاوخوا کې و چې د ۱۳۵۷ ل کال په اندول (۲۵۸) زره تنه او یا په سلو کې (۲۵) کموالی ښیي . په ۱۳۶۶ کې (۶۹) حرفوي تخنیکي تعلیمي موسسې

---

(۱) - ګزیده شاخصهای احصائیوی ، داحصائیې وزارت ، کابل ، ۱۳۷۰ل کال، بیلا بیل مخونه .

(۲) - سالنامهٔ احصاییوی، داحصائیې وزارت، کابل، ۱۳۶۹ل کال ، ۱۷ مخ .

(۳) - همدا اثر ۲۴۵ مخ .

فعالې وې چې د ۱۳۵۷ ل کـال پـه پرتلـه پـه سـلو کـې (۶۳،۲) زيـاتوالی دی . پـه ۱۳۵۷ل کال کې دروغتونونو دبستر شمير (۴،۳) زرو بسترونو ته رسيده خـو پـه ۱۳۶۱ کال کې (۹،۷) زرو بسترونو ته لوړ شو . په ۱۳۵۷ ل کال کې دهرولسو زرو تنو لپـاره (۰،۸) ډاکتر خو په ۱۳۶۶ کال کې هرولسو زروتنو لپاره ( ۱،۷) ډاکترانو ته لـوړ شـو . چې (۲،۱) زياتوالی ښيي . (۱)

ددې پړاو په وروستيو کلونو کې دښوونې اوروزنې او همدارنګه دلـوړو زده کـړو خومره والی په لاندې ډول دی :

| | ۱۳۶۹ | ۱۳۷۰ |
|---|---|---|
| دښوونځيو ټول شمېر | ۱۴۰۱ | ۱۴۲۷ |
| لومړني ښوونځي | ۵۸۳ | ۵۹۴ |
| منځني ښوونځي | ۸۱۸ | ۴۹۱ |
| ليسې | // | ۲۴۲ |
| دزده کوونکوشمير | ۹۰۹،۹ زره تنه | ۹۱۱،۰ زره تنه |
| له دې جملې څخه : | | |
| لومړني ښوونځي | ۶۲۷،۹ زره تنه | ۶۲۸،۷ زره تنه |
| منځني ښوونځي | ۲۸۲،۵ زره تنه | ۱۸۰،۹ زره تنه |
| ليسې | – | ۱۰۱،۴ زره تنه |
| دفارغانوشمير | ۱۳۱،۶ زره تنه | ۱۱۳،۴ زره تنه |
| له دې جملې څخه | | |
| لومړني ښوونځي | ۲۵،۸ زره تنه | ۷۲،۹ زره تنه |
| منځني ښوونځي | ۱۱۸،۸ زره تنه | ۴۰،۵ زره تنه |
| ليسې | - | - |
| دښوونکو شمير | ۲۳،۵ زره تنه | ۲۳،۱ زره تنه |
| لـه دې جملـې څخـه: ښځينـه ښوونکي | ۱۲،۴ زره تنه | ۱۲،۳ زره تنه |
| دکورسونوشمير | | |
| دسواد زده کړې | ۱۵،۶ زره | ۱۶،۰ زره |
| شاملين يې | ۳۳۰،۵ زره تنه | ۳۳۲،۵ زره تنه |

(۲) – پوهنمل دوکتور نجيب الله فايز ،اجتماعي علوم مجلـه، کـابل پوهنتـون ، ۱۳۶۸ل کـال ،

| | | |
|---|---|---|
| فارغان يې | ۶۹،۴ زره تنه | ۱۲۳،۰ زره تنه |
| دښوونکواوسوپروايزرانو شمير | ۳،۷ زره تنه | ۳،۷ زره تنه |

دلوړو زده کړو دموسسو اومحصلينو خومره والی په دې ډول دی :

| دلوړوزده کړودموسسوشمير | ۱۳۶۹ | ۱۳۷۰ |
|---|---|---|
| ټول | ۳ بابه | ۷ بابه |
| دپوهنځيو شمير | ۳۷ | ۳۷ |
| دمحصلينو ټول شمير | ۱۶،۵ زره تنه | ۱۸،۳ زره تنه |
| دشاملانو شمير | ۷،۲ زره تنه | ۷،۵ زره تنه |
| دفارغانو ټول شمير | ۱۵۴۳ تنه | ۱۷۸۲ تنه |
| داستادانو ټول شمير | ۱۴۲۷ تنه | ۸۸۶ تنه |
| دمنځنيومسلكي حرفوي ښونځيوشمير | ۵۲ بابه | ۲۵ بابه |
| دمحصلينوټول شمير | ۸،۵ زره تنه | ۳،۷ زره تنه |
| دشاملانو شمير | ۳،۲ زره تنه | ۱،۲ زره تنه |
| دفارغانو شمير | ۱۱۷۲ تنه | ۸۱۲ تنه |
| دښوونکو شمير | ۹۲۵ تنه | ۴۸۹ تنه |
| دتخنيكمونو شمير | | |
| ټول | ۹ بابه | ۹ بابه |
| دمحصلينو شمير | ۶۲۰۵ تنه | ۳۷۲۴ تنه |
| دلومړي كال دمحصلينوشمير | ۱۸۸۵ تنه | ۱۰۲۵ تنه |
| دفارغانوشمير | ۱۵۰ تنه | ۵۷۲ تنه |
| داستادانو شمير | ۵۰۶ تنه | ۵۱۵ تنه |
| دښوونكودروزنې موسسې | ۱۱ بابه | ۱۱بابه |
| ټول محصلين | ۲،۲ زره تنه | ۲،۸ زره تنه |
| دشاملانو شمير | ۱،۰ زره تنه | ۱،۳ زره تنه |
| دفارغانو شمير | ۶۴۹ تنه | ۸۶۴ تنه |
| داستادانو شمير | ۱۶۹ | ۵۱۸ |

ددې پړاو په وروستيودريوو کلونوکې دطبي برخې خومره والی پدې ډول وو :

| دروغتونو شمير | ۱۳۶۸ | ۱۳۶۹ | ۱۳۷۰ |
|---|---|---|---|
| تول | ۱۰۴بابه | ۱۱۱ بابه | ۱۱۱ بابه |
| دبسترونو شمير | ۱۰،۵ زره بستره | ۱۰،۳ زره بستره | ۱۰،۴ زره بستره |
| د هرولسوزروتنولپاره دبسترشمير | ۶،۳ بستره | ۶،۴ بستره | ۶،۳ بستره |
| دډاکترانو شمير | ۳۲۷۹ تنه | ۳۵۳۵ تنه | ۳۵۹۰ تنه |
| دهر ولســـــــــوزروتنولپاره دډاکترانوشمير | ۲،۱ تنه | ۲،۲ تنه | ۲،۲ تنه |
| دمنځينوطبي زده کړوپرسونل | ۶۶۵۳ تنه | ۶۶۷۳ تنه | ۷۱۸۲ تنه |
| اساسي صحي مرکزونه | ۷۵ بابه | ۱۰۳ بابه | ۷۵ بابه |
| دايکسريزونو شمير | ۱۱۴ | ۱۱۳ | ۱۱۳ |
| ددرملتونونوشمير | ۱۶۲۵ | ۱۷۳۷ | ۱۹۷۰ |
| ددرمل جوړونکوشمير | ۷۶۲ تنه | ۸۵۸ تنه | ۱۰۹۸ تنه (۱) |

په ټوليز ډول ددې پړاو په وروستيو دووکلونوکې زيات شمير علمي او مسلکي کادرونه له افغانستان نه ووتل . ددولتي نظام ورځ په ورځ کمزوري ،پر چارونه واکمني، دنظام پرپايښت بې باوري ،دجګړې ګواښونه ، زياته اقتصادي تنګلاسي ، دپوهې او علم دمادي ارزښت کميدل او ځنې نور عوامل ددې سبب شول چې زيات شمير تحصيل کړي اشخاص خپل ټاټوبی پريږدي او پرديو هيوادونو ته پناه يوسي .

تردې وخت پورې له ٦ ميليونو څخه زياتو افغانانو په بهر کې استوګنه غوره کړې وه چې تقريباً دهيواد دټول نفوس ۳۷ فيصده وګړي جوړوي ، نوکه چيرې په دې وخت کې دهيواد دټولو تحصيل کړيو اشخاصو مهاجره برخه معلوموو نو هلته کيدای شي همدا سلنه په پام کې ونيول شي ، يو اټکل هم کيدای شي هغه داچې تر۱۳۷۰ ل کال پورې دټول نفوس په حساب ۳۷ فيصده افغانان مهاجر شوي وي نو کيدای شي دتحصيل کړي اشخاصو شميره د هغوی دسلنې (فيصدی) له مخې لهدې له ۳۷ فيصدو څخه څه ناڅه کمه ځکه وي چې دافغانستان تحصيل کړي خلک اکثره په لويو ښارونو کې راټول شوي وو ، او تردې وخته لوی ښارونه او په تيره بيا مهم روزنيز تحصيلي او تعليمي مرکزونه دواکمنو په لاس کې وو او دکليوالي سيمو په اندول ډير مصوون پاتې وو . پدې وخت کې دمهاجرينو ګڼ شمير ناڵوستي

---

(۱) ګزيده شاخصهای احصاييوی ، بيلا بيل مخونه .

کسان وو چې دعقيده يي ، فکري عواملو ، دجګړې اومرګونو دپرله پسې خطرونو لـه امله مهاجر شــوي وو . دارقـامو لـه مخـې د همـدې پړاو پـه وروسـتيو کلونـو کـې "دمجاهدينو د لندمهالي حکومت دښوونـــې او روزنــې وزارت پـه (١٦٠٨) ښوونځيـو اومدرسو کــې (۴۰۳۲۹) تنـو افغانـانو زده کـړه کولـه . پـه دې شـميره کـې (١٠٥٧) ښوونځي او مدرسې په سرحد صوبه ، سنده او اسلام آبـاد ، (٢٠٢) پـه بلـوچستان ، (٨٩) په ايران کې او (١٢٢) په هغو سيمو کې وو چې دافغانستان دننـه ددوی لاسته ورغلې وې .

ددې ترڅنګ (١٥) ښوونځي او مدرسې نورې هم وې چې افغاني نجونـو پکـې زده کـړه کولـه. (١) دغـه راز يوشـمير افغانـانو پـه آزادو ښوونځيـو او ان پاکسـتاني ښوونځيو کې هم زده کړه کوله .

خو په ټوليز ډول دیادونې وړ ده چې پـدې وخـت ( دريم پړاو کـې ) ديـادوړ تحصيل کړي اشخاص دبيلا بيلو لاملونو له امله دهيواد پريښودو ته اړ شوي دي .

---

(١) شـباهنګ ، بازســازي نــهادهاي فرهنــګي افغانســتان ، دآزاد افغانســتان دليکوالوټولنه ، ١٣٧٦، ٣٦مخ.

# څلورم پړاو

## ( ۱۳۷۱غويي - ۱۳۷۵ تله )

( ۱۳۷۱-۱۳۷۵) کلونه دافغاني ټولنې هغه دردونکي او کړوونکي کلونه دي چې زموږ ټولنې دخپلې مادي او مانيزې شتمنۍ ډېره برخه پکې له لاسه ورکړه . د ۱۳۷۰ ل کال په وروستيو مياشتو کې دواک دنيولو لپاره ائتلافونه او سازشونه پيل شول ، دهمدې سازشونو په پايله کې يوه ډله ترنورو دمخه کابل ته دننه کړای شوه. هغه ځګړه چې له ۱۳۵۷ل کال وروسته دغرونو له سرونو پيل شوې وه پر ۱۳۷۱ ل کال کې دښارونو زړونو ته ورسيده . تردې دمخه چې کومه مانيزه او عامه شتمني په کليوالو سيمو کې وه هغه خو دېرله پسې جګړو ، بمباريو او لوټنې له کبله له منځه وړل شوې وه . يوازې په لويو ښارونو کې ګڼ شمير ښوونيز روزنيز او فرهنګي مرکزونه او دغه راز اقتصادي تاسيسات پاتې وو چې هم پرې دهيواد زيات شمير علمي ، مسلکي او فني کادرونه راټول وو او هم هغه عام ولس چې په ښارونو کې ميشته و . سره له دې چې جګړې افغانستان ډېرزيات ځپلی و خو بيا هم په ښارونو کې دتمدن ، پرمختيا او اوچت کلتور نښې نښانې ښکاريدې . کله چې مختلف وسله وال تنظيمونه ښارونو ته په بې کنټروله ډول ورننوتل ، نو نه يوازې داچې په ښارونو کې درنه جګړه پيل شوه ، بلکې په شعوري او ناشعوري ډول په لوټ ، تالان او ړنګونې هم لاس پورې شو . علمي مرکزونو هم پدې لړ کې دومره زيانونه وزغمل چې تصور يې هم نه کيده .

په لويو ښارونو کې له هغې جملې دکابل په ښار کې چې تر ټولونه زيات ددرنو جګړو مرکز و ، داکترو ښوونځيو ، روزنيزو او علمي مرکزونو شتمني لومړی لوټ اوبيا وسيځل شول . ښوونه او روزنه په ډيرو ولايتونو کې په ټپه ودريده . هغه ولايتونه چې دکابل دچارواکيو په واک کې نه وو ،دهغو ښوونځيو او نورو روزنيزو

سلګونو منځني اوشخصي کتابتونونه تباه شول ؛ شل میلیونــه توکــه کتابونـه تبـاه او چورشول ؛ یو ملي او څو سیمه یـیز موزیمونـه تبـاه شـول ؛ لـه ۱۲۰ زرو توتو څخـه زیات تاریخي آثار له دې موزیمونو لوټ او تـالان شـول ،تـر ۲۰ زرو زیـاتې علمـي ، تاریخي او هنري خطي نسـخې تبـاه شـوې ، پـه زرګونـو هـنري آثـار او تـابلوګانې وسیځل شول ، په ټنونو سره او سپین زر له هیواد څخه بهر کړای شول ؛ پـه میلیونـو ټنه وسپنه او په لسګونو ټنه مس په ناڅیز قیمت په ګاونډیانو وپلورل شول ، یـوه دوه سوه کلنه مجربه اردو ړنګه کړای شـوه ، پـه لسـګونو زره دولتـي او شـخصي ګاډي ویجاړ ، چور او وسیځل شول ، عقیده یي ، سیاســي اوسیمه یـیز ، سـمتي او ژبنیـو رنځونو او اورونو ته لمن ووهل شوه ، په هیواد کې دملـي انـډول او قومـي تـوازن دګډوډولو لپاره هڅې وشوې ؛ د سیاسي واک پـر مصنوعـي سـرچینـو ګوتـې ووهـل شوې . دلوړو زده کړو تر ۱۴ زیاتې موسسې دلړ اوږدیر وخت لپاره له کـاره ولویدلـې ، دپوهې او پرمختګ مخې ته په شعوري او ناشـعوري ډول خنډونـه واچـول شـول . دټولنیزو او کلتوري ارزښتونو دسپکاوي او کمـزورئ لپـاره هـڅې وشـوې . دهیـواد نړیوال حیثیت ته ستر زیانونه ورواوښتل ، دچاپ او خپرونو شل لـوی مرکزونـه تبـاه شول ،تر شلو زیات راديويي او ۷ تلویزیوني دستګاوې په بشپړ او قسمي ډول ویجـاړې شوې ،دهیواد زیات او یا هـم ټول وګړي لـه ډول ډول صحـي او روانـي نـاروغیو ، اقتصادي ستونزو او نورو ربړو سره مخاخ شول . لنډه داچې داسـې یـوه غمیزه پـر افغانانو راغله چې نه یې دافغانانو په تیر تاریخ کې ساری موجـود واو ـ دنړۍ پـه تاریخ کې به یې هم ډیره لږه انډولیزه بیلګه پیدانشي .

لکه چـې ددې جګړې دنـاوړین او غمیزې پـه بـهیر کـې دافغانستان زیـاتره فرهنګي ، علمي ،اقتصادي مرکزونه ړنـګ ، ویجـاړ او چـور کـړای شـول،همداسـې دهیواد پر علمي او فرهنګي کادرونو او دکار سرېو باندې هم دمـرګ او درد شـمال تیر شو . په زرګونو علمي کادرونه ، زنداني ، شکنجه او په بیلابیلـو پړاوونـو کـې پـه بیلا بیلو پلمو له کـاره ګوښه کـړای شـول او نـور پـه لسـګونو زره دخپـل ټاټوبـي پریښودو ته اړ شول . یونه اټکلیدونکی شمیر تحصیل کـړي افغانـان دنړۍ پـه ګوټ ګوټ کې خواره شول او هیوادیې له کار او علمي تجربو څخه بې برخې شو .

زه دهیواد دفرهنګ او آبادۍ دلیوال او مینه وال په توګه د خپل ژوند لـه پیلـه بیا تردې دمه دخپل هیواد په غیږ کې اوسیږم ، دشلو کلونـو دډول ډول حکومتونـو نادودې ، دخپل ولس په ځانګړي ډول دتحصیل کړو هیوادوالـو پـه وړانـدې جـې دهر پړاو هغه چلند په خپلو سترګو لیدلی چې زموږ په لسـګونو زره او ان پـه لکونـو تحصیل کړي افغانان یې دهیـواد پرېـښودو تـه اړ کـړل . اوس هیـواد دعلمـي او

مرکزونو ته څکه پیسې نه ورکول کیدې چې ددوی په اند هغه ددوی دمخالفینو په لاس کې وو او مخالفینو خو څکه ځانته مسوولیت نه راجع کاوه چې ځان یې دیو تنظیم په توګه مطرح کاوه او دکابل دچارواکو په شان یې پرځان د " اسلامي دولت " ماسک نه و غوړولی،نو څکه خویې د ښوونځیو تمویل د دولت کار اومسوولیت ګاڼه . په دې پیر کې هیوادته اساسي او سترګوزار همغه دښارونو په منځ کې د درنو جګړو پیل و . کله چې د ۱۳۷۱ ل کال دغویي په میاشت کې مختلف تنظیمونه ښارونو ته ننوتل نو په هیواد کې دپخواني سیاسي ، فکري او ان فزیکي نظام ټوله بنه بدله شوه . دجګړې شدت ، فکري اختناق ، ترور ، وژنې ، ناامني ، بې مسوولتیې په ډله ییز ډول دښارونو وګړي دې ته مجبورکړل چې خپل کورونه او دندې پریږدي او دمهاجرت لاره ونیسي .

په دې بهیر کې تر ټولو زیات زیان تحصیل کړو اشخاصو ته وروانښت .د ۱۳۷۱ ل کال دغویي له پیښې وروسته چې څومره تحصیل کړو اشخاصو خپل هیواد پریښود، په بل هیڅ وخت کې ددې مهال په اندول دومره تحصیل کړي کسان او هغه هم له ښارونو او علمي مرکزونو څه نه وو وتلي . ( دهغو احصاییو له مخې چې دغربي راډیو ګانو له خوا نشر ته سپارل شوي پدې څلورکلن ناورین کې څه دپاسه اتیا زره بې ګناه کسان دکابل په ښار کې وژل شوي دي . داهغه شمیر دی چې نړیوال سره صلیب او نورو خیریه موسسو نشر کړی دی»(۱) دغه راز ویل کیږي چې پدې وخت کې یوازې دکابل په ښار کې له (۶۰) زرو څخه زیات کورونه ړنګ کړای شوي او په لکونو افغانان دهیواد دننه کې بیځایه شوي او بهر ته مهاجر شوي دي . په همدې لړ کې دمهاجرینو ستر کمپونه دننګرهار په لویو دښتو کې جوړ شول او هم ګڼ شمیر کورنۍ پاکستان او ایران ته مهاجرې شوې .

دملګرو ملتو دکابل د (UNCHA ) داداري د ۱۹۹۵ م کال دجولای – نومبر دیوې سروې له مخې دکابل ښارپه سلو کې ( ۴۸/۳) کورونه ویجاړ شوي دي .

سره له دې چې پدې پیر کې له بهر نه په ځانګړي ډول له پاکستان او ایران څخه دافغانستان بیلا بیلو سیمو ته دمهاجرینو زیات شمیر بیرته ستانه شوي خوله ښارونو څخه دعلمي او مسلکي کادرونو دفرار بهیر تر بل هر وخت څخه زیات ګړندي و . په همدې پیر کې دافغانستان منظم وسله وال پوځ ، چې په عصري او مجهزو وسلو سمبال و او له پوځي پلوه یو غښتلي پوځ وپه لسګونو زره مسلکي او تخنیکي کارکوونکي ، افسران او کارپوهان یې بې برخلیکه او بې دندې کړای شول .

---

(۱) پوهنیارمحمدنبي فراهي ، هیله مجله ، ۱۳۷۶ ل کال ، ۲ ګڼه ، ۶۲ مخ .

تر ۱۳۷۱ ل کال دمخه دافغانستان وسله وال پوځ دپوځیانو شمېر له یو لک تنو څخه زیاتېده او که دهغه وخت تبلیغاتي ارقام په پام کې ونیول شي نو دا شمېر ان څو لکوته رسیږي .

تحصیلي او روزنیزې ادارې په دې وخت کې ټولې ړنګې بنګې او دځینو تشکیلاتي حضور هم ختم کړای شو . راډیو ټلویزون ، ښوونې او روزنې ، دلیکوالو، هنرمندانو او ژورنالیستانو ټولنې تر زیاته برېده له منځه لاړې چې وروسته به یې په جلا څېرکي که یادونه وشي .

دهیواد او په تیره بیا دکابل ښار دلوړو زده کړو زیاتره مرکزونه تر زیاته وخته تړلي او له فعالیت لوېدلي پاتې شول . په دې واټن کې کابل پوهنتون (۱۸) میاشتې تړلی و چې ټول تلف شوي وخت یې ( دمحصلینو دشمېر په اندول ) ۲۱ میلیونو درسي ساعتونو ته رسیږي . دکابل طب انستیتوت ، کابل پولي تخنیک هم لږ تر لږه لس لس میلیونه درسي ساعتونه ضایع کړي دي . همدارنګه هوایي ، حربي پوهنتونونه، دعلومو اکاډمي، دپولیسو اکاډمي، دکابل پیداګوژي او دښوونکو دروزنې (۱۴) بیلابیلې موسسې ، تخنیکمونه او نورو هم کادري او هم علمي زیانونه زغملي دي . له دې ټولو علمي موسسو څخه دکادرونو تېښتې دوام وموند ، له کابل پوهنتون څخه تقریباً (۱۰۰) تنه استادانو دندې پرېښودو او مهاجرت ته اړ شول. دعلومو اکاډمي تقریباً په سلو کې د (۲۵) برخې په شمېر علمي کادرونه له لاسه ورکړل ، دراډیو ټلویزیون دهنري ، تخنیکي او علمي کادرونو تلفات تر ټولو زیات دي . او همدارنګه دنورو علمي مرکزونو .

پدې پړاو کې چې دپخوانیو کادرونو پرځای کوم نوي کسان وګمارل شول ، هغه په هیڅ ډول دهغو پخوانیو ځای نه شو ډکولای . هغه افغانان چې پخواني رژیم دزده کړو لپاره بهرنیو ملکونو ته لیږلي وو او شمیر یې سلګونو نه، بلکې زرګونو ته رسیده ، ددې حالت په راتلو سره خپل هیواد ته دبیرته ستنیدلو ټول خوبونه ، تدبیرونه او خیالونه له سره وایستل . ځینې په همغو هیوادو کې پاتې شول او ځینو هم خپل تحصیل نیمګړی پرېښود او له هغو هیوادو څخه هم نورو هوساتولنو ته دتګ په لټه کې شول .

ددې پړاو بل رنځوونکی ګوزار داو چې افغانستان کې دهرې خبرې حل دبرچې په څوکې پورې وتړل شو ، دمنطق او استدلال جنازه بارشوه ، تعلیم او تحصیل نه یوازې خپل مانیز ارزښت بایلود ، بلکې مادي ملاتړیې هم له لاسه ورکړ. پدې پړاو کې داخبره عملي کېږي چې څنګه قلم دکلاشنیکوف په وړاندې

دڅوړي. دکتلو په لوبه کې ماته خوري ، او علمي اشخاص مجبوريږي خپل مسلک خوشې او ديوې مړې ډوډۍ دپيداکولو لپاره دويم ، يادريم کارته لاس واچوي . کله چې يو مسلکي شخص له خپل آر ( اصل ) مسلک څخه دژوند دخروب لپاره دويم يا دريم کارته لاس اچوي ، نو تر هرڅه لومړی له خپل مسلک او ځانګې سره دده په ذهني تړاو کې پوله رامنځته کيږي ، ورو ورو دډوی تر منځ اړيکې شليږي ، خپل مسلک سره بې تفاوته کيږي ، بيا لرې کيږي ، يعنې دمسلک دپريښودلو سبب يې کيږي او پدې ډول ديو مسلک او پوهې خاوند دوخت په تيريدو سره پر يوه عادي شخص اوړي . دمسلک پريښودل او يا دهغه دپريښودلودزيانونو کچه خورا لوړه ده . کوم مسلکي او علمي کادرونه چې دهيواد په داخل کې پاتې وو او بهر ته دتګ وسه يې نه درلوده دهغو اکثره دمسلک دپريښودلو له امله دمسلکي کادرونو له ليکې ووتل . په تيرو نظامونو او يا هم په سياسي جريانونو کې دځينو علمي او مسلکي کادرونو ، دذهني او عملي برخې اخيستنې له امله هم ډير مسلکي اشخاص يا مهاجر شول او يا هم له دندې ګوښه کړای شول .

اقتصادي ستونزو او دپيسو انفلاسيون هم دعلمي کادرونو او ثابت عايده خلکو نقدي پانګه وترووړله، هغوی يې دپولي ټک له کښينول . واکمنو دخپلې بقا لپاره پدې پړاوکې دومره پيسې چاپ کړې چې ساری به يې نه يوازې زموږ په تاريخ بلکې دوخت دانډول له مخې دنړۍ په تاريخ کې هم نه وي . دځينو ارقامو له مخې ددې پير چارواکو په څلورو کلونو کې ( ۸۰۰۰ ) مليارده افغانۍ چاپ کړې چې سريال نمبر يې په بانک کې شته ، له دې پرته دنورو چاپ شويو پيسو اندازه (۱۷) زره مليادرو افغانيو ته رسيږي . (۱) ددې پير دحکومت د ۱۳۷۳ کال بودجه (٦۲۵) مليارده افغانۍ اټکل شوې ده ، خو دولت يوازې ( ۸۰-۹۰ ) مليارده عايد ترلاسه کړای شول له (۵۰۰) مليارده افغانيو څخه زيات لګښت يې دبودجې دکسر پخني دنوټونو له چاپه څخه پوره کړ (۲) دې پير کې پيسې په شمير نه بلکې په ټنونو چاپ شوې ، ديوې فرضي او انګليزې شميرنې له مخې ددې دورې ټولې چاپ شوې پيسې (د ۱۳۷۵ تلې پورې ) تر سل زره مليارده افغانيو هم زياتې کوي که داپيسې دافغانستان پر ټول نفوس ويشل شوې وای نو هر افغان ته به په لکونو افغانۍ ور رسيدلې وای ، خو ددې پيسو زياته برخه دجګړې ددوام او دځانې ګټو لپاره وکارېدله او همداراز يې دهېواد دوګړو په تيره بيا دثابت عايده دولتې مامورينو او علمي کادرونو نقدي زېرمه هم له منځه يوړه . په دې پير کې انفلاسيون

(۱) ډاکترمحمداکبر ، هيله مجله ، ۱۳۷٦ ل کال ، ۱ ګڼه ، ۲۷-۲۸ مخونه .

(۲) دبهرنيو چارو دوزارت يو ګزارش .

تقریباً په سلوکې ( زر څله) اوچت شو خو ددولتي مامورینو او مسلکي اشخاصو معاش ایله په سلوکې ( ۳۰-۳۵) اوچت کړای شو .

دغسې اقتصادي تنکسیا هم دډیرو تحصیل کړو اشخاصو ژوند خپیته او تریخ کـړ، یا دمسلک او یا هم دهیواد پریښودلو ته اړ شول .

هغوی تحصیل کړیو اشخاصو، دېپلوماتانو ، متخصصینـو او نـورو مسـلکي اشـخاصو چې په تیر پړاو کې یې په بهرنیو هیوادو او ملګرو ملتو کې دافغانسـتان پـه سـفارتونو او نماینده ګیو کې کار کاوه ، دنوي پړاو په راتګ سره یو هم بیرته خپـل هیـواد تـه رانغلل او تقریباً ټولو په بهرنیو هیوادونو کې سیاسي پناه واخیستله .

( ۱۳٦۵- ۱۳۷۱) ل کلونو کي افغانستان د بهرنیو هیوادونو پـه دې ښارونـو کـې سفارتونه او نماینده ګی درلودې :

۱ لندن
۲ روم
۳ پاریس
۴ صوفیه
۵ برلین
٦ بوداپست
۷ وارسا
۸ بلګراد
۹ بن
۱۰ پراګ
۱۱ عدن
۱۲ مسکو
۱۳ هاوانا
۱۴ پیکنګ
۱۵ اولان باتور
۱٦ ادیسه بابا
۱۷ هانوی
۱۸ دهلي
۱۹ کویټ
۲۰ طرابلس

۲۱ قاهره
۲۲ دمشق
۲۳ جاکارتا
۲۴ ډاکه
۲۵ توکیو
۲٦ تهران
۲۷ انقره
۲۸ ویانا
۲۹ اسلام آباد
۳۰ پیونګ یانګ
۳۱ هراري
۳۲ بغداد
۳۳ په نیویارک کې دملګرو ملتو په سازمان کې دافغانستان نماینده ګي
۳۴ په ژنیو کې نماینده ګي
۳۵ په بمبې کې دافغانستان جنرال قونسلي
۳٦ په تاشکند کې قونسلي
۳۷ په مشهد کې قونسلي
۳۸ په کراچی کې قونسلي
۳۹ په پیښور کې قونسلي
۴۰ په کویټه کې قونسلي . (۱)

له دغو نماینده ګیو او سفارتونو څه سرې اټکل کولای شي چې څومره مسلکي کادرونه او تحصیل کړي اشخاص به پکې مصروف وو ، هغوی ټولو له دې نوي پړاو سره دذهني ، فکري مخالفت او په هیواد کې دګرمې جګړې له امله نورو هیوادونو ته پناه یوړه او پدې ډول افغانستان دیو زیات شمیر هغو دپلوماتانو له لرلو څخه هم بې برخې شو چې کلونه کلونه یې پرې لګښت کړي و او بیایې په عملي کار کې یو څه تجربه هم ترلاسه کړې وه .

دغه راز په دې پېر کې دبهرنیو چارو له وزارت څخه هم (۲۵) تنه کارکوونکي چې دماستر او لیسانس تحصیلي درجه یې لرله له دندو څخه ګوښه شویدي .

---

(۱) دافغانستان کالنی ، کابل ۱۳٦٦ ل کال ، (٦۸۱-۲۸۲) مخونه .

سیمه ییزو، ژبنیو، فرهنګي ، مذهبي ، تنظیمي ، سیاسي او ځینو نوروکینه یـیزو قصدي هڅو هم په پراو کې له هیوادنه دمسلکي کادرونو په ایستلو کې اغېز درلـود. دکار داهلو او پوهو کسانو پرڅای ، پرسیاسي ، ژبنیو ،توکمیزو او نورو معیارونو دنااهله کسانو ګمارل بل هغه لامل و چې ګڼ شمیر روڼ اندي او مسلکي کسان یې تیښتې ته مجبور کړل .

ددې پېر په وروستیو دوو کلونو ( ۱۳۷۳- ۱۳۷۴) کې واکمنوته له مخالفینو څخه دکابل ښار ځیني برخې په لاس ورغلې چې په هغو کې دکابل پوهنتون او طب انستیتوت هم شامل وو . کابل پوهنتون چې په همدې پړاو کې دکابل دمرکزي برخو دچارواکو او دهغو دمخالفینو لـه خـوا وران او ویجاړ شوی و یـو ځل بیا دسیاسي هدفونو مرکزوګرځید ، واکمنو هڅه وکړه چې دپوهنتون دبیا رغوتې په برخه کې چې دجګړې په ترڅ کې ورته تر (۵۰) میلیونه ډالرو زیات زیان اوښتي ؤ یو څه لګښت وکړي . له ځینو پوهنځیو پرته چې ډېر دروند زیان ورته اوښتی و دپوهنتون دفزیکي بیا رغونې کار تقریباً په سلو کې (۷۵ ) ترسره شو .

په همدې پړاو کې هڅه وشوه چې یو شمیر نوي کسان هم دپوهنتون علمي کادر کې شامل شي . په مجموعي ډول پـدې پړاو کې دهیـواد دمحصلینو او استادانو شمیر په دې ډول دی :

په ۱۳۷۱ ل کال کې کابل پوهنتون (۹۷۷۵) تنه محصلین د ورځې او ( ۱۱۰۲) تنه دشپې پوهنځیوکې درلودل ، اسلامي پوهنتون (۹۰۸) تنه ، ننګرهار پوهنتون (۱۵۱۴) تنه ، بلخ پوهنتون ( ۱۱۶۸) تنه دهرات پوهنتون (۵۲۵) تنه او دکابل پولیتخنیک ( ۲۸۷۹) تنه محصلین درلودل .

په ۱۳۷۲ ل کال کې دکابل پوهنتون ټولـو محصلینو شمیر ( ۱۱۲۷۷) تنه ، دننګرهار پوهنتون ( ۷۴۷) تنه ، دهرات پوهنتون ( ۸۷۴) تنه ، دکابل پولیتخنیک (۱۲۱۳) تنه دبلخ پوهنتون (۱۷۱۸) تنه و.

په ۱۳۷۳ ل کال کې داشمیر کابل پوهنتون (۱۰۱۷۵) تنه ،ننګرهار پوهنتون (۹۸۶) تنه ، کابل پولیتخنیک ( ۱۶۵۶) تنه ، او دبلخ پوهنتون (۱۸۱۰) تنه و (۱).

داستادانو ټول شمیر (۷۳۱) تنه و .

په ۱۳۷۴ ل کال کې کابل پوهنتون دمحصلینو شمیر (۵۵۷۱) تنه ( ورځ) ، (۱۴۰۲) تنه دشپې پوهنځي ، (۱۲۵۲) تنه دننګرهار پوهنتون ، (۹۲۵) تنه دهرات پوهنتون ، (۶۹۲۰ تنه دکابل پولیتخنیک ، ۱۱۱۶ تنه پیداګوژۍ کې وو .

---

(۱) - سالنامه احصائیوي ، ۱۳۷۲-۱۳۷۳ کلونه .

دهیواد لهٔ نورو علمي مرکزونو څخه کابل پوهنتون ته دواکمنو پاملرنه زیاته وه، کیدای شي سیاسي لامل پکي زیات اغیز ولري .

هغه پاملرنه چې کابل پوهنتون ته وه بل هیڅ علمي او روزنیز مرکز تـه نـه وه ، که په تولیز ډول ددې دورې په باب خبره مطرح کیږي نو سـړی ویـلای شـي چـې دافغانستان په تاریخ کې نه یوازې له سیاسي ، اخلاقـي ، اقتصـادي او امنیتـي پلـوه دادوره یو ډیره کرغیړنه دوره وه ، له علمي پلوه هم دافغانسـتان دعلمـي کـادرونو ، علمي مرکزونو لپاره یوه تباه کوونکې او وژونکې دوره ګڼل کیږي .

# پنځم پړاو

## ( ۱۳۷۵ تله - ۱۳۷۸ وری )

داپړاو په داسې وخت کې پیل شو چې تېردې دمخه څلورنیم کلنې انارشۍ دټول هیواد دژوند رګونه نیولي وو . کابل په وینو کې غوټې وهلې او نور ښارونه ورځ په ورځ پر یوه مړاوي او مرږوانډي برخلیک اخته کېدل . دښارونو ، کلیو او باندو ټول اوسېدونکي ، دلوټ ، تالان ، بدلمنۍ ، جګړې ، وژنې او ورانۍ له ګوزارونو څخه ستړي شوي او تر پوزې راغلي وو . ټول دیو ژغورندویه الهي ځواک په هیله وو . دډېرو په سترګو یوازې تیاره ښکارېدله او درڼا څرک نه لګېده . په پای کې داسې یو ځواک پیدا شو چې پخواني ټوپکیان یې ټول له یوې مخې پسې پهمخه کړل ، له کلیو او ښارونو یې وشړل او وسلې یې ترې راټولې کړې . د ۱۳۷۵ کال دتلې پر ۵ نېټه دې ځواک دکابل پخوانۍ جنجالیزه اداره راوپرځوله او خپله دواک پرګدۍ کښیناست : خلک چې له جګړو یې حده زیات ستړي شوي وو دنوي ځواک راتګ او بري ته یې هرکلی ووایه ! نوي ځواک که هر څومره سوله او امن ټینګ کړ او خلک یې دوېرې او ډار له خپو څخه داډمن او آرام حالت ته راوګرځول ، خو دا آرامي له یو لړ داسې بندیزونو سره مله شوه چې ورو ورو دډېرو خلکو دذهني ستړیاسبب شوه . له مذهب نه یو بل ډول ځانګړي تعبیر ، دسیاسي افکارو څارنه ، دآزاد فکر دوزرونو تړل ، ډول ډول بندیزونه او نور فشارونه ددې سبب شول چې دواکمنو او تر حکم لاندې اشخاصو په تیره بیا دپخوانیو دولتي کارکوونکو تر منځ یو ډول واټن څرګند شي . ددې پړاو په بهیر کې یو ځل بیا دښاري تحصیل کړي قشر یوه ډله مهاجرت ته اړ شوه او دډول ډول بندیزونو تاب یې رانه ورای شو . په دې دوره کې پر ښځینه تحصیل کړي او تحصیل کوونکې قشر دلګول شوي بندیزله امله ډېرو خپله دنده له لاسه ورکړه او نورې یې له تحصیل

ځخه ( پدې مهال ) کې بې برخې شوې . ویل کیږي چې تردې دورې دمخه په ټول دولتي جوړښت کې دښځینه کارکوونکیوشمیر تر۴۰ زروتنو پورې رسیده . سره له دې چې دې ښځو ته هماغه پخوانۍ معاش ورکول کیږي ، خو دچټکې انفلاسیون په وجه دهغو دمعاش ارزښت په نشت حساب دی . هغه تحصیل کړې ښځې چې دآزاد ښاري کلتور په رڼاکې یې خپل ژوند او ولی او عیار کړی و ، له دې نویو بندیزونو سره یې کلتوري او ذهني پیوستون رانغی او دهیواد پرېښودو ته اړې شوې . دغه راز په دې بهیر کې واکمنو په پخوانیو دولتونو کې دځینو مامورینو او دولتي کارکوونکیو ددریغ پلټنه هم پیل کړه او هم یې دځینو اشخاصو او مسلکي کادرونو فکرې لوري او دتحصیل ځایونه وڅارل او پوښتنې کړل . ددې تر څنگ چاچې په تیرو کمونیستي رژیمونو کې په هر نامه کوم ستاینلیک یا مدال اخیستي و ، دهغو څارنه هم وشوه ، هغه شمیر تحصیل کړي اشخاص چې دتیرو نظامونو له خپونه په یو نه یو ډول تر دې دمه پخپلو ځایونو کې پاتې وو ، یو ځل بیا له گواښ سره مخامخ شول . پدې ترڅ کې اکثره وزارتونه وپلټل شول او هغه کسان چې له نویو وضع شویو مادونه په یوه کې برابر و د "نامطلوب " په نامه له خپلې دندې گوښه شول ، په اکثرو وزارتونو کې دکار وشو خوپه لویه څارنوالي او عدلیه وزارت کې ددې تصفیې کچه ډیره زیاته وه . دبهرنیو چارو په وزارت کې (۳۴) تنه کارکوونکي چې دوکتورا ، ماستري او لیسانش دپلومونه یې لرل له خپلې دندې منفک شول . دلوړو زده کړو له وزارت ځخه دلوړو زده کړو دموسسو (۱۱۷) تنه استادان نامطلوب وگڼل شول چې پدې کې (۵۳) تنه دکابل پوهنتون استادان وو . وروسته بیا پردې "نامطلوبو" کسانو یو ځل بیا غور وشو چې دکابل پوهنتون له (۵۳) نامطلوبه کسانو ځخه (۲۸) بیرته " مطلوب " او (۲۵) نامطلوب وگڼل شول او له دندې گوښه کړای شول . پدې موده کې دکابل پوهنتون دمحصلینو شمیر یوازې په نارینه وو مشتمل و ، ښځینه محصلین ترې منفي شول . دنارینه محصلینو شمیر تقریباً (۳) زرو تنو ته رسیدنه . دهمدې پیر دد‌وو‌کلونو دفارغانو شمیر هرکال تقریباً (۴۰۰) تنو ته راتیټ شو . ځینې استادانو له سیاسي او فکري کیبس پرته خپله له پوهنتون سره علاقه وشلوله . په دې کلونو کې په ځینو ولایتونو ، لکه کندهار ، ننگرهار ، هرات او بلخ کې هم پوهنتونونه فعال وو. له طب او پیداگوژۍ پرته په ۱۳۷۶ ل کال کې دننگرهار پوهنتون استادانو ، محصلینو او ځانگو شمیر په لاندې ډول دی

| ګڼه | پوهنځي | استادان | محصلین | څانګې |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | انجنیري | ۱۵ تنه | ۲۰۰ تنه | ۳ |
| ۲ | کرنه | ۲۰ تنه | ۸۷ تنه | ۳ |
| ۳ | تعلیم او تربیه | ۱۸ تنه | ۲۷ تنه | ۳ |
| ۴ | ادبیات | ۱۴ تنه | ۲۸ تنه | ۳ |
| ۵ | اقتصاد | ۱۲ تنه | ۹۴ تنه | ۲ |
| ٦ | شرعیات | ۱۸ تنه | ۵۲ تنه | ۳ |
| ۷ | وترنري | ۳ تنه | ۷۲ تنه | ۱ |

په دې کال کې ننګرهار پوهنتون له طب او پیداګوژۍ پرته (۱۰۵) تنه استادان، ٦٦۲ تنه محصلین او ۲۱ څانګې لرلې او له ۱۳۵۷ ل کال راپه دیخوا یې په ټولیز ډول (۲۳۲٦) تنه انجنیران، متخصصین، ښوونکي او دیني عالمان ټولنې ته وړاندې کړي دي. (۱)

په ۱۳۷۷ ل کال کې دننګرهار پوهنتون دوه تنه استادان هم ووژل شول او له دې سره دپوهنتون داستادانو یوه ډله پېښورته مهاجره شوه چې ځینې یې بېرته ستانه شول او ځینې یې پاتې شول.

په دې پړاو کې دافغانستان په دولتي جوړښت کې یو چوړلټ شکلي بدلون پېښ شو. مسلکي او حرفه يي زده کړې په دولتي جوړښت کې دکمارنې او په تېره بیا په لوړو پوستونو کې دتقرر عامل ونه ګڼل شوې، بلکې په دولتي چارو کې داستخدام تګلورې او واک په یوه مشخص فکري ګروپ پورې وتړل شو. داسې ښکاري چې تر عمومي مدیریت پورې ټول لوړ پوستونه دهمدې څانګړې ډلې دغړو او یا هم دهغې دنږدې پلویانو لپاره مختص شویدي. په یوه دولت کې ددوو ډولونو معاشونو دودیدل چې دافغانستان په ټول دولتي جوړښت کې یې بیلګې نشته هم دعامو دولتي کارکوونکو په تېره بیا دمسلکي کادرونو او واکمنو ترمنځ دزړونو او ذهنونو فاصله زیاته کړه. ذهني، ذوقي، سلیقه يي بندیزونه اودغه راز وچ حاکمیت هم پدې پړاو کې دمسلکي کادرونو دفرار بل عامل و.

دهیواد په دننه کې دمسلکي کادرونو دفرار او تیښتې اونورو ډول ډول نیمګړتیاوو سره سره پدې پړاو کې اساسي او بنسټیز کار داوشو هغه سیمي چې ددې

(۱) – پوهاند غونچه ګل حبیب ساپي، ننګرهارمجله، ۱۳۷۷ل کال، ۴ ګڼه، ٦۲مخ.

مسلکي کادرونو له پلوه له يوې لويې خلا سره مخ دی ، هر هغه حکومت چې په راتلونکي کې دهيواد دبيارغونې دژوند دخروب او سوکالۍ لپاره څه نيتونه او هيلي لري نو دعلمي کادرونو دنشتوالي له کبله به له سختو ستونزو سره مخ شي .

په دې اثر کې تر ممکنه بريده په لنډيز سره په بيلا بيلو پړاوونوکې دهيواد دمسلکي او علمي کادرونو ، دفرار ځرنګوالی او دهغو ځومره والي څيړل شوی دی او دهغودبيرته راتګ پرځرنګوالي بحث شوی او په دې اړه ځو وړانديزونه شوي دي .

ديادونې وړ بولم‌چې دزړه درد اوخپلې ملي ولولې ددې کتاب ګوتې ليکلوته هڅولی يم . دافغانستان په اوسنيو تنګو شرايطو کې ديو پوره علمي او کره اثر ليکل ناشوني ځکه ښکاري چې دپوره سرچينو او منابعو پيداکول خورا ګران او ان ناشوني دي ، ځکه چې هلته هرڅه تباه شوي دي ، کله چې دعلمي کادرونو دفرار دځرنګوالي په باب بحث کيږي نو سړی مجبور دی چې دمعلوماتو لپاره همغې موسسې يا سرچينې ته مراجعه وکړي ، خوپه هيواد کې داهرڅه تر زياته بريده تباه شوي دي . اوس نو چې څوک دافغانستان هرې برخې ته دور اړول شوي زيان په اړه څيړنه او پلټنه کوي نوله سختو ستونزو سره به مخامخ شي او په ډيرو تيارو کې تر مزل وروسته ايله کې پردې بريالي شي چې ديو څيز څرک پيداکړي . زه هم له همدغې ستونزې سره مخ شوی يم ، ما دهر رقم دپيداکولو لپاره خو ځله اړونده ادارو ته مراجعه کړې خو ځرنګه چې زيات څه تباه شوي دديرو ان دلازمو او ضروري ارقامو اومدارکو په پيداکولو بريالی نه شوم ، کوم څه چې ترلاسه شول دهمغو په رڼاکې مې دغه څو پاڼې ليکلي ، له دې څخه هم څه‌ناڅه څرک لګي چې دهيواد فرهنګ او په تيره بيا دعلمي کادرونو په برخه کې څه تير شوي او اوس څه پاتې دي ؟ دلته به دناتار او غميزې په بهير کې او دهغو له پيل څخه لږ دمخه دهيواد دعلمي اومسلکي کادرونو پر ضايعاتو خبرې وکړو•

مشخص تحریک په لاس کې کښیوتې ، هلته بشپړ امن تامین شو او له امـن سره په لومړي ګام کې په بشپړه تـوګه دهیـواد دفزیکـي ویجاړۍ مخـه ونیـول شـوه او همداراز دبیارغونې او زرغونولو کار هم ورو ورو پیـل شـو . د ۱۳۷۱-۱۳۷۵ پړاو په بهیر کې په ټول هیواد کې داسې یو لوټ او تالان ګډ و ډ چـې کـه تراوسـه یـې دوام موندلی وای نو په ټول هیود او په تیره بیا په کابل کې به هیڅ هم پاتې نـه و . خـو دپنځم پړاو واکمنو ستر انساني او هیوادنی رسـالت ترسره کـړ ، دهیـواد دتجزیـې خطر یې په اوس وخت کې محوماویا هم ډیر کمزوری کړ او پـه نیـول شـویو سیمو کې یې دنورې ورانۍ او ویجاړۍ مخه ونیوله . په همدې وجه ددې پیر په بهیر کـې ګڼ شمیر افغان مهاجرین له پاکستان او ایران څخـه بیرتـه خپـل هیـواد تـه ستانه شول. په ستنو شویو افغانانو کې دتحصیل کړیـو افغانـانو شـمیر خوواـړدي ، اکـثره لوستو افغانانو دخپل هیواد پرځای نورو هیوادونو ته مخه کړه او پدې ډول دټولـې غمیزې په بهیر کې دنړۍ یو زیات شمیر هیوادونو کې میشته شول . اوس بـه دنـړۍ ډیر کم هیوادونه پیدا شي چې هلته دې افغانانو دخپل ژوند دپاتې برخې دتـیرولو لپاره ورته سر نه وي ښکاره کړی ؛ خو په ټولیز ډول له هغو هیوادونو څخه چـې ګڼ شمیر افغانانو ورته پناه وروړې ده ددغو هیوادونو نومونه اخیستلای شو : پاکسـتان، ایران ، دپخواني شوروي اتحاد جمهوریتونه ، جرمني ، انګلستان ، دامریکا متحـده ایالات ، هالند ، فرانسه ، ډنمـارک ، اسـترالیا ، نـاروې ، سـویډن ، سـویس ، ایتالیـا ، بلجیم ، هندوستان ، کاناډا، ځیني عربي هیوادونه ، ترکیـه ، چـک ، سـلواک ، نـوی زیلانډ او داسې نور هیوادونه . دیادونې وړ ده چې دې هیوادونو ته اکثره تحصیـل کړیو افغانان پناه وړې ده او بیا یې ځینو خپلې کورنۍ هم لـه ځان سره وړې دي . دیو تحصیل کړي افغان عبدالمالک بیکسیار په وینا چې په ډنمارک کې اوسیږي ، لـږ ترلږه ډنمارک ته تراوسه پـورې ( دوه زره ) افغانـانو پنـاه وروړې ده ، پـدې دوه زره کسانو کې داټکل له مخې تر (۵۰۰) تنو پورې انجیـنران ، ډاکـتران او پـه بیلـو بیلـو څانګو کې دلوړ تحصیل خاوندان دي .

دنړۍ په اکثرو هیوادونو کې دغمیزې له پیل نه تر اوسه پورې دمیشـتو افغانـانو ددقیق شمیر جاج معلوم شوی نه دی ځکه چې لا اوس هم افغانان دورتګ په حال کې دي او یا هم له یو هیواد څخه بل هیواد ته ځي او دتحول پـه حـال کـې دي خو دملګرو ملتو اداري UNHCR له ( ۱۹۸۰- ۱۹۹۹) پورې په پاکسـتان ، ایـران ، هند ، روسیې او دمنځنۍ آسیا په هیوادونـو کـې دافغانستان مـهاجرینو هغـه شـمیر خپور کړی چې له دوی سره په بیلا بیلو وختونو کې ثبـت شـوي دي . ددې شـمیر څرنګوالی پدې ډول دی :

| کال | پاکستان | ایران | هند | روسیه | قزاقستان | گرجستان | تاجکستان | ترکمنستان | ازبکستان | تول |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۹۸۰ | ۴۰۰،۰۰۰ | ۲۰۰،۰۰۰ | - | - | - | - | - | - | - | ۶۰۰،۰۰۰ |
| ۱۹۸۱ | ۱،۴۰۰،۰۰۰ | ۵۰۰،۰۰۰ | - | - | - | - | - | - | - | ۱،۹۰۰،۰۰۰ |
| ۱۹۸۲ | ۳۷۵،۰۰۰ | ۸۰۰،۰۰۰ | ۳،۰۰۰ | - | - | - | - | - | - | ۳،۱۷۸،۰۰۰ |
| ۱۹۸۳ | ۲،۷۰۰،۰۰۰ | ۱،۲۰۰،۰۰۰ | ۴،۰۰۰ | - | - | - | - | - | - | ۳،۹۰۴،۰۰۰ |
| ۱۹۸۴ | ۲،۸۰۰،۰۰۰ | ۱،۵۰۰،۰۰۰ | ۵،۰۰۰ | - | - | - | - | - | - | ۴،۳۰۵،۰۰۰ |
| ۱۹۸۵ | ۲،۹۰۰،۰۰۰ | ۱،۸۰۰،۰۰۰ | ۶،۰۰۰ | - | - | - | - | - | - | ۴،۷۰۶،۰۰۰ |
| ۱۹۸۶ | ۲،۷۰۰،۰۰۰ | ۲،۰۰۰،۰۰۰ | ۶،۰۰۰ | - | - | - | - | - | - | ۴،۷۰۶،۰۰۰ |
| ۱۹۸۷ | ۲،۸۷۸،۰۰۰ | ۲،۲۲۱،۰۰۰ | ۶،۰۰۰ | - | - | - | - | - | - | ۵،۱۰۵،۰۰۰ |
| ۱۹۸۸ | ۳،۱۵۶،۰۰۰ | ۲،۷۰۰،۰۰۰ | ۵،۰۰۰ | - | - | - | - | - | - | ۵،۸۶۱،۰۰۰ |
| ۱۹۸۹ | ۳،۲۵۵،۰۰۰ | ۲،۹۰۰،۰۰۰ | ۵،۰۰۰ | - | - | - | - | - | - | ۶،۱۶۰،۰۰۰ |
| ۱۹۹۰ | ۳،۲۷۲،۰۰۰ | ۲،۹۴۰،۰۰۰ | ۸،۰۰۰ | - | - | - | - | - | - | ۶،۲۲۰،۰۰۰ |
| ۱۹۹۱ | ۳،۱۸۵،۰۰۰ | ۳،۰۰۰،۰۰۰ | ۱۲،۰۰۰ | - | - | - | - | - | - | ۶،۱۹۷،۰۰۰ |
| ۱۹۹۲ | ۳،۰۷۷،۰۰۰ | ۲،۹۰۰،۰۰۰ | ۱۰،۰۰۰ | - | - | - | - | - | - | ۵،۹۸۷،۰۰۰ |
| ۱۹۹۳ | ۱،۶۲۷،۰۰۰ | ۲،۷۰۰،۰۰۰ | ۱۱،۰۰۰ | ۱۲،۰۰۰ | - | - | - | - | - | ۴،۳۵۰،۰۰۰ |
| ۱۹۹۴ | ۱،۴۷۷،۰۰۰ | ۱،۸۵۰،۰۰۰ | ۲۴،۰۰۰ | ۱۶،۰۰۰ | - | - | - | - | - | ۳،۳۶۷،۰۰۰ |
| ۱۹۵۵ | ۱،۰۵۳،۰۰۰ | ۱،۶۲۳،۰۰۰ | ۲۲،۰۰۰ | ۱۷،۰۰۰ | - | - | - | - | - | ۲،۷۱۵،۰۰۰ |
| ۱۹۹۶ | ۱،۲۰۰،۰۰ | ۱،۴۲۰،۰۰۰ | ۲۰،۰۰۰ | ۱۹،۰۰۰ | ۲،۰۰۰ | ۱،۰۰۰ | ۱،۰۰۰ | ۲،۰۰۰ | ۳۰،۰۰۰ | ۲،۶۹۵،۰۰۰ |
| ۱۹۹۷ | ۱،۲۰۰،۰۰۰ | ۱،۴۰۰،۰۰۰ | ۱۹،۰۰۰ | ۲۰،۰۰۰ | ۲،۰۰۰ | ۱،۰۰۰ | ۱،۰۰۰ | ۲،۰۰۰ | ۳۰،۰۰۰ | ۲،۶۷۵،۰۰۰ |
| ۱۱۹۸ | ۱،۲۰۰،۰۰۰ | ۱،۴۰۰،۰۰۰ | ۲۰،۰۰۰ | ۱۷،۰۰۰ | ۲،۰۰۰ | ۱،۰۰۰ | ۲،۰۰۰ | ۱،۰۰۰ | ۳،۰۰۰ | ۲،۶۷۵،۰۰۰ |
| ۱۹۹۹ | ۱،۲۰۰،۰۰۰ | ۱،۴۰۰،۰۰۰ | ۲۴،۰۰۰ | ۱۶،۰۰۰ | ۴۰۰ | ۶۰۰ | ۳۶۰۰ | ۱۰۰ | ۳۷۰۰ | ۲،۶۳۹،۰۰۰ |

په روسیه کې (۱٦۰۰۰) تنه افغانانو پوازې سیاسي پناه غوښتې ده ، خواتکل (۱۵۰) زره تنه افغانان دروسیې په فیدریشن کې اوسیږي (۱)

په ټولیز ډول ددې پړاو په باب سرې ویلی شي چې دا دوره هم لکه څنګه چې ځینې تحصیل کړي او مسلکي کادرونه او فني کارکوونکي پکې "نامطلوب" وګڼل شول ، همداسې دهیواد ځینې تحصیل لرونکي قشر ته "نامطلوبه" دوره وه . په دې دوره کې دروزنیزو، ښوونځیو او نورو کلتوري مرکزونو دودانیو فزیکي اعمار ته زیان ونه رسیده او دهغو دساتنې هڅه وشوه خو البته ځیني ښوونځي ، روزنیز او علمي مرکزونه له مشخص مرام ،نصاب او تګلارې څخه واړول شول او دیو بل ډول درسي نصاب تابع شول . ددرسي نصاب ګډوډول یوهغه ستر روزنیزه او ښوونیزه ستونزه ده چې په تیرو کلونو کې زموږ دهیواد تعلیمي سیستم ورسره لاس او ګریوان و او په نږدې راتلونکي کې هم دیو واحد معیاري تحصیلي او تعلیمي نصاب رامنځته کیدل یو ستونزمن کار ښکاري . ۱۳۷۵- ۱۳۷۸ کلونه دهیواد دزیاتې برخې لپاره دامن او سولې په برخه کې بریاوې خو دروزنیز چار په برخه کې نیمګړتیاوې او ان پرشاتګونه لري .

---

(1) Afghan Refugee Bulletin, UNHCR , February 1999 , Page 13

# دارزښتونو کمزوري کېدل او دفرار
# ګړندي کېدل

افغانستان ته دتیرو دوولسیزو په ترځ کـې ډول ډول ډرانـه زیانونـه اړول شـوي دي . دټولنې کلتوري استحکام او ارزښتونو ته هـم دومـره زیانونـه ور واړول شـول چې ډیرې برخې یې کمزورې شوې ، ځینې یـې کـم ارزښتـه او ځینـې یـې وپاشـل شوې. دغمیزې په لومړي پړاو کې دیو فکري او عقیده یي معیار له مخې دواړو غـاړو جګړې ته ملاوتړله . ذهني جګړه په ګرمې پیل او ورپسې فزیکي جګړه توده شـوه . په لومړي پړاو کې دواړو غاړو دخپل فکري ښوونځي تر سیوري لاندې ځان حق پـه جانب ګڼله او تر یو ډول رواني ډاډ لاندې یې جګړې ته دوام ورکـاوه . پـدې پـړاو کې چې څه تحصیل کړي اشخاص هیواد پریښودلـو تـه اړ شـوي وو نـو زیـاتره پـه پاکستان اوایران کې میشته وو ، یو ډیر کم شمیر یې نوروهیوادو ته پنـاه ور وړې وه . دشوروي په یرغل سره چې څپې څپې افغانان او په هغوکې تحصیل کـړي اشـخاص پاکستان او ایران ته مهاجر شول نو بیا هم دجګړې ، قرباني او دهیـواد دخپلواکـۍ روحیه ډیره پیاوړې لاخه چې اورنی شوه . خپل هیواد او اسلام سره مینـه پـه څپـو وه او هغو ته ټول په ډیر لوړ ارزښت یعني دژوند دقرباني په بیه قـایل وو . ځکـه نـو دپردیو په وړاندې دافغانانو دمبارزې مورچل له فکري ، رواني او عقیـده یـي پلـوه ډیر غښتلی و . پدې پېر کې هم افغانان دنړۍ په ډیرو هیوادونو کې خـواره شـول ، دخوریدو یو علت یې هم دا و چې اکثرو جهادي تنظیمونو هلته دفترونـه پرانیسـتي وو او دشوروي پر ضد دمبارزې لپاره دمرستو راټولولو په لټه کې وو . ډیر کـم شـمیر افغانان پدې نیت ورغلي وو چې هلته دایمـي پناه واخلـي او دهغـه ځای تـابعیت ومني .

اکثرو افغانانو ته داخبره بیخي شرم او ننګ ښکاریدله چې څنګه خپل قومي او ملي هویت پریږدي او دبل هیواد تابعیت ومني . سره له دې چې په هغه وخت کې دزیاتو تحصیل کړو او ان عادي افغانانو لپاره ددې خبرې امکانات وو چې دوی دهمغو لویدیزو هیوادو په لګښت هلته لاړ شي او بیا یې ومني . داسې انګیرل کیږي چې لویدیځوالوداګڼله چې دشوروي تر وتلو وروسته باید واک داسې یوې ډلې یا اشخاصو ته ولیږدول شي چې دلویدیځ پلویان وي . نو له دې کبله یې زیات شمیر تحصیل کړو افغانانو ته خپله غیره خلاصه کړې وه او دپناه امکانات یې ورته برابر کړي وو . هغوی غوښتل چې له همدغو افغانانو څخه په راتلونکي کې دحکومت جوړولو دعملي ځواک په توګه ګټه پورته کړي . هغه وخت دا فکر او اټکل نه کیده چې شوروي اتحاددې په دې بڼه وپاشل شي او بیا دې دومره ذلیل شي چې دخپل ځان دراټولولو وس دې هم پیدا نه کړي او افغانستان دې خپل هغه پخواني سیاسي او پوځي ارزښت بایلي .

سره له دې چې پدې وخت کې دیاد وړ افغانان لویدیځ ته مهاجر شول ، خواکثرو دخپل هیواد دآزادۍ لپاره شپې او ورځې شمیرلې او له رواني او فکري پلوه پدې فکر کې نه وو چې دوی به په لویدیځ کې پاتې کیږي او دهیواد راتلونکي شرایط به ددوی دراتګ مخه نیسي او یا به هم داسې حالت را ځي چې ددوی هغه پخوانۍ ولولې مړاوې او ځینې نور ارزښتونه کمزوري کړي .

په بل پړاو کې چې دشوروی لښکرې له افغانستان څخه وایستل شوې ، دجګړې عقیده یې لوړې هم ورو ورو بدلیده او هغه پخوانی ځواک او ګرمي یې ورو ورو له لاسه ورکوله . خودې پېر کې بیا هم لویدیځ ته دتحصیل کړو اشخاصو دبهیر لړۍ تمه نه شوه . پاکستان ددې ډول اشخاصو دتګ لپاره مناسب ځای و، له همدې ځایه اکثرو افغانانو غرب ته پناه یووړه . په دې پېر کې هم ځینو هغوروڼ اندو تحصیل کړو اشخاصو چې پخوایې د "کمونستي نظام" پرضد جګړه کوله ورو ورو یې هغه پخوانۍ ولوله او رواني ډاډ کمزوری کیده . نوځکه خوله یو سترې ژوند څخه دیو آرام ژوند په لټه کې شول . دفزیکي ارامتیا لپاره نو تر لویدیزو هیوادونو نوره غوره ټولنې په نظر نه ښکاریدې .

سره له دې چې عقیده یي او کلتوري جوړښت یې دهغو ټولنو له وګړو څخه هم افراطي بڼه لرله چې دوی یې پرضد جګړه کوله . پردې ټولنو واکمن فکري تکلوري او کلتوري فضا نه یوازې داچې دافغاني ټولنې له عقیده یې جوړښت او کلتوري رغښت سره اړخ نه لګاوه بلکې دواړه سره په رنګ او مانا کې تضادهم لري. پدې وخت کې چې کومو سیاسي تحصیل کړو اشخاصو غرب ته پناه یووړه نو

هغوی پر خپل ایډیال نظام او دهغه په بري بې باوره شان ښکارېدل او یا هم کیدای شي وویل شي چې دشعار او عمل ترمنځ یوه تیر ایستونکې پرده موجوده وه او دعام ولس دذهن او سترګو لید تردې پردې اخوا د واقعیت دلیدلو ځواک نه درلود .

په څلورم پړاو کې چې دکابل دپخواني نظام دتخت تختـه واړول شوه ، په اصطلاح نوی "اسلامي نظام " رامنځته شو ، نو ددې نوي نظام دناوړه کړنو په نتیجه کې ټولو هغو عقیده یي او ملي ارزښتونو ته زیان واوښت چې (۱۴) کاله زموږ ولس دهغو دګټنې لپاره جګړې او مبارزې ته هڅول شوی و .

داسلام په نوم داسې اسلام ضد کارونه وشول چې چایې تصور هم نه کاوه ، دې سره هم دجګړو له ویرې او هم دپخوانیو حسابونو دتصفیې له وړاره دپخواني حکومت ګڼ شمیر کادرونه او نور علمي اشخاص له افغانستان څخه ووتل او لویدیځ ته یې دپخواني حکومت دغړو او کار کوونکو په توګه پناه یووړه . تردې دمخه چې به څوک لویدیځ ته تلل نو دسیاسي کیس دمنلو هغه وجه به یې له کمونستي رژیم سره دمخالفت مساله وه ، خو تر دې وروسته له بنسټپالو سره مخالفت او ویره دمنلو عامل وګرځید . کمونیزم پلوه اشخاصو هم پرخپلو اصولو پښې کیښودې اوپه ډله ییز ډول دکمونستي هیوادونو پرځای لویدیځ او "امپریالیستي" هیوادونو ته مهاجر شول ، دې مهاجر شویو اشخاصو کې داسې کسان هم شته چې پخپل وخت کې زموږ ډیر هیوادوال د" امپریالیزم" دګوډاګیانو ، زامنو او لاسپوڅو په نوم له دندو ګوښه کړي . زنداني کړي ، توهین کړي او وژلي دي . له ۱۳۷۱ کال وروسته دجګړو پرله پسې دوام دښارونو لوټونه ، ورانونه او عامه وژنه ددې سبب شول چې پخواني جهادي تنظیمونه هم خپل پخواني حیثیت او ارزښت بایلي .

دې وخت کې ټول هغه ارزښتونه چې په تیرې لسیزې کې زموږ ولس دوارړه خواوې دهغو دساتنې او پالنې لپاره جګړې کې راښکیل شوي وو، له منځه لاړل ، پدې پړاو کې نور په لویدیځ کې دپخوانیو مجاهدینو په انډول دی نویو ملحدینو ته هلته دمنلو شرایط اسانه وو .

دژوند ستونزې هم ورځ په ورځ دومره زیاتیدې چې ډیر کسان یې دیته مجبورول چې لویدیځو هیوادوتو ته پناه یوسي . داسې کسان هم پدې وخت کې لویدیځ ته دتګ لپاره لیدل شوي چې پخوایې تصور هم نه کاوه .

ددې پړاو په بهیر کې په لکونو افغانان نورو هیوادوته مهاجر شول . وروسته وروسته چې شرایط نور هم سخت شول او په هیواد کې دخدمت ټول امکانات تر

ډول ډول ګردونو لاندې راغلل او دمحوه کیدو تر بریده ورسیدل ، نو ډیرو افغانانو په ځانګړي ډول تحصیل کړو اشخاصو ته ښکاره ډاډ پاتې نه شو .

په راوروستو وختونو کې لویدیزو هیوادونو ته دتګ شرایط ډیر سخت شول خو بیا هم ورتلونکیو افغانانو ډول ډول ستونزې وزغملې او دخپلې شخصي پانګې او یا هم په لویدیځ کې دخپلو دوستانو په مالي مرستې یې ځانونه هلته ورسول او دالړی لا دوام لري .دا چې ددې افغانانو مهاجرت افغانستان ته څومره زیان دی او که نه ؟ایا دا خلک به بیرته خپل هیوادته راشي او که نه ؟ پدې باب به وروسته یو اټکلیز نظر وړاندې کړو .

دی پورتنیو ګڼو لاملونو زموږ دهیواد زیات تحصیل کړي اشخاص او علمي کادرونه مهاجرت ته اړ کړل ، اوس ـــــ دهیواد هر علمي ، هنري ، روزنیز او ښوونیز مرکز نه زیات شمیر علمي او خپل ضروري پرسونل ـــــ کډه کړې ده . موږ به دلته دهیواد ددې ډول علمي ، فرهنګي او هنري مرکزونو له جملې څخه پر یویا څو مرکزونو او دتلو علمي کادرونو پر څومره والي رڼا واچوو .

# دافغانستان راډیو تلویزیون

دنورو فرهنګي ، هنري او روزنیزو مرکزونو ترڅنګ دافغانستان راډیو او ټلویزیون ته هم ډیر زیانونه اړول شوي دي . لـه ۱۳۵۷ ل کـال نـه تـر ۱۳۷۱ ل کـال پـورې دافغانستان دراډیو او ټلویزیون په بیلا بیلو برخو کې زیـات پرمختګونـه او بدلونونـه رامنځتـه شـوي وو . پـه دې دوره کـې راډیـو او ټلویزیـون څه فزیکـي زیانونـــه او دویجاړې ګوزارونه نه وولیدلي . له کابل پرته په یو شمیر ولایتونو کې هـم راډیویـي او ټلویزیوني دستګاوې فعالې اود نصبیدو په حال کې وې ، خـو بیـا هـم دواکمـن سیاسي فکر او دهغو دځینو چلندونو له امله راډیو ټلویزیون ، خپـل ځینـې تخنیکـي پرسونل له لاسه ورکړ . په ۱۳۷۱ ل کال چې پرکابل او پر ټول هیواد کومه وبا خپره شوه ، نو دهغې په ترڅ کې راډیو ټلویزیون هــم بـې شـمیره زیانونـه وزغمـل . پـه مجموعي ډول دراډیو ټلویزیون ټولو برخـو او تاسیسـاتو د ۳۰۰ میلیونـو ډالـرو پـه شاوخوا کې زیان زغملی دی . دپرســونل لـه مخـې هـم پـدې دوره کـې دراډیـو ټلویزیون ګڼ شمیر ویندویان ، ژورنالستان ، تخنیکي کارکوونکي ، انجنـیران او هـنر مندان مهاجرت ته اړ شول ، وروسـې د ۱۳۷۵ ل کـــال دتلـې دشـپږمې نیتـې بدلـون راغـی ، دې سره روغ ټلویزن چورلټ بند شو او پاتې پرسونل یې هــم څه منفـک او څه هم مهاجر شو . پدې دوره کې بیا هم راډیو او ټلویزیون دپرسونل له مخې ډیـر زیات زیانونه ځکه وزغمل چې نویو قوانینو کې هغو ته دفعالیت هیڅ ځای پاتې نـه و ، په ځانګړي ډول سندرغاړو او دځینو برخو هنري پرسونل ته،د ۱۳۷۸ ل کال پـه پیل کې دراډیو ټلویزیون ځینو کارکوونکو په دې تیرو بیلا بیلـودورو کـې دپرسـونل له پلوه دراډیو ټلویزیون دتلفاتو فیصدي داډول ښودلې ده :

له ۱۳۵۷ - ۱۳۷۱ ل کال پورې ، په راډیو اوټلویزیون کې ۷۰فیصـده ویندویـان ، ۷۰فیصده دموسیقي هنرمندان ، ۸۰ فیصده ژورنالستان ، ۹۰ فیصده دتیاتر هـنرمندان او ۹۰فیصده تخنیکي پرسونل پاتې و او نور یـازنداني شـوي ، یـایې دنـده خوشـې کړې، یا مهاجرت ته اړشوي اوځینې یې مړه هم شوي دي .

له ۱۳۷۱-۱۳۷۵ پورې ۱۰% نطاقان ، ۲۰% دتياتر هنرمندان ، ۱۰% موسيقي هنرمندان ، ۲۰% ژورنالستان ، او ۱۰% تخنيکي پرسونل پاتې و ، او نورو راديو تلويزيون خوشې کړي و ...
له ۱۳۷۵ څخه تر ۱۳۷۸ ل کال پورې ۳%ويندويان ، ۲% دتياتر هنرمندان ،% ۵ ژورنالستان او% ۳ تخنيکي پرسونل پاتې و ، او نور ضايعات لري .
دلته به دراډيو تلويزيون دتخنيکي ، هنري او ژورنالستيک پرسونل دځينو مشهور اشخاصو نومونه واخلو چې پدې تيرو پړاونو کې يا تلف شوي او يا يې راډيو تلويزيون پرې ايښې اومهاجر شوي دي .

**وياندان ( نطاقان ) :**

| | | |
|---|---|---|
| ۱ سيف الرحمن ابراهيم خيل | ۲۴- حسيب خاورې | ۴۴- قمر سيد |
| ۲- غلام نبي پاکتين | ۲۵- لطيفه کبير سراج | ۴۵- نجيب جان نصير |
| ۳- سهيلا حسرت نظيمي | ۲۶- نفيسه محمود | ۴۶- نجيب يوسفزاده |
| ۴- ثريا خادم | ۲۷- شريفه شريف | ۴۷- حامد نوري |
| ۵- تورپيکی خادم | ۲۸- مينه بکتاش | ۴۸- علي محمد صادقيار |
| ٦- رشاد بهير | ۲۹- لطيفه قريشي | ۴۹- پروين ملال |
| ۷- عبدالله شادان | ۳۰- فريده پاکتين | ۵۰- پروين هاشم منصور |
| ۸- سيما شادان | ۳۱- گل جان انند | ۵۱- تاج محمداکبر |
| ۹- ډاکتر حيدر يوازې | ۳۲- انيسه لطيف | ۵۲- نبيله همايون |
| ۱۰- فريده انوري | ۳۳- مستوره شال ( په | ۵۳- نيره |
| ۱۱- کريمه طهوري | پينبور که مړه شوه) | ۵۴- عبدالوهاب شادان |
| ۱۲- ذکيه کهزاد | ۳۴- فريده هوډ | ۵۵- اقليما مخفي |
| ۱۳- زيباخادم | ۳۵- نصير سهام | ۵٦- مقدسه مخفي |
| ۱۴- عبدالغفور وياند | ۳٦- عبدالقدوس تندر( په | ۵۷- مسعودُ خليلي |
| ۱۵- سيدافضل اکبر | جرمني کې مړشو) | ۵۸- مسعُود مجروح |
| ۱٦- ډاکتر حسن شينواری | ۳۷- قمرسيد | ۵۹- لطيف جلالي |
| ۱۷- محمد عارف همدم | ۳۸- نجيبه حيدر | ٦۰- سلام جلالي |
| ۱۸- عنايت شريف | ۳۹- شريفه پاخون | ٦۱- ظاهر طوطاخيل |
| ۱۹- عبدالهادي ُشکور | ۴۰- بصير امين زاده | |
| ۲۰- وکيل احمد ابوي | ۴۱- هاشم پکتياني ( په | او ځيني نور |
| ۲۱- خطاب عمر | پينبور کې ووژل شو) | |
| ۲۲- عبدالطيف ستانکزی | ۴۲- قاسم يوسفزاده | |
| ۲۳- محمدآغا الکوزی | ۴۳- آمنه ځيرک | |

# سندرغاړي اوهنرمندان :

| | | |
|---|---|---|
| ظاهر هویدا | سیماترانه | زمان شوقي |
| رحیم بخش | سلیم بخش | بیلتون |
| هماهنګ | قاسم بخش | ناشناس |
| احمد ولي | وکیل روف | الفت آهنګ |
| هنګامه | عبدالحمید کندهاری | الطاف حسین |
| رخشانه | ظاهر چاریکاری | اکبر نیکزاد |
| ژیلا | مختار مجید | استاد صابر |
| میرمن پروین | وحید صابري | استادشیدا |
| ژینوس | وحید قاسمي | میا شیدایي |
| ایوب | مهوش | استاد موسی قاسمي |
| نعمت الله | سلما | حفیظ الله خیال |
| قمرګله | رحیم جهاني | ریحان |
| احمدشاکر | حیدرسلیم | خالوشوقي |
| عبدالله مقری | حسین ارمان | رشیده ژاله |
| منګل | قاسم لوګري | نادیه |
| نغمه | سلام لوګری | ریتاورمه |
| ځلاند | ګلزمان | شاه محمدکندهاری |
| سهیلا ځلاند | حکیم نور اکاخیل | سید محمد کندهاری |
| ساراځلاند | سیدعلم | دین محمد |
| حامد شکران | سحر ګل | منور ( په پیښور کې مړشو) |
| فرهاد دریا | شاه ولي | خیرمحمدخندان |
| عبدالله شادکام | افسانه | اوځیني نور |
| فیض کاریزي | الفت هروي | **نورکارکوونکي :** |
| سیف الدین | یونس | غلام حسن نیر |
| شیر غزنوي | وجیهه رستګار | ضیا احمد جاهد |
| اسدبدیع | فریدرستګار | عبدالله افاقي |
| جاوید الهي | امیرجان صبوري | عبدالغني مهم |
| رحیم مهریار | طاهر شباب | عزیزایشانزاده |
| پرستو | ګلشن | اصغر افضلي |
| مرجان | عزیزه افغان | نیازمحمد بنایي |
| رعنا | اسمعیل پیروز | حبیب الله تخاري |
| مرینا | نورجهان | اسحق ایماقي |

# ترغمیزې دمخه ښوونځیونو کې ښوونیز او روزنیز بهیرته لنډه کتنه

د ۱۳۵۷ ل کال دغوايي له ۷ نیټې دمخه ښوونځیونو کې زموږ ټولنه په نسبي ډول باثباته وه ، همداثبات ددې سبب شوی وچې یو لړ ټولنیز ، فرهنګي او دژوند په نورو برخو کې یو لړ پرمختګونه او برياوې زموږ دخلکو په برخه شي ، افغانستان دمخ پر ودې هیوادونو په ډله کې په چټکۍ سره دودې او پرمختګ پړاوونه وهل په نړیوال ، سیاسي ډګر کې دهیواد دریځ ځلنده او روښانه و . دوخت حکومت خپله زیاته پاملرنه ټولنیز پرمختګ ،دښوونې او روزنې عامیدلو او ودې ته راړولې و.

«کله چې په ۱۳۵۲ ل کال کې جمهوریت اعلان شو ، نو نوي نظام دمعارف لپاره دنوي پروګرام او ریفورم جوړولو ته وعده ورکړه او کارپیل شو . دکمیت پر ځای کیفیت ته توجه وشوه ، له همدې کبله په ۱۳۵۲ ل کال کې نوي ښوونځي جوړ نه شول ، خو له زړو ښوونځیو نه په بشپړ ډول کار واخیستل شو او د ۱۳۵۱ ل کال دزده کوونکو شمیره چې ۱۴۷ زره تنه وه ۱۶۰ زروتنوته لوړه شوه .

دمعارف نوی ریفورم د ۱۳۵۳ ل کال دمرغومي پر ۳۰ نیټه پیل شو، ددې ریفورم مهم ټکی دیوداسې پرمختللي معارف منځته راوړل و چې دوخت افغاني ټولنې غوښتنو ته ځواب ووايي او ځوانان په ښه ډول تنویر کړي .

ددې ریفورم له مخې لومړنۍ زده کړې چې وړیا او اجباري وې له شپږو کلونو نه اتو کلونو ته لوړې شوې او منځنۍ دوره تجزیه شوه ، دوه ټولګي ابتدایيې ته ورکړل شول ، چې پدې ټولګیو کې دمحیطي معلوماتو او دنظري او عملي حرفو زده کړه هم شامله وه . داتم ټولګي فارغان ثانوي او مسلکي زده کړو ته دکانکور له مخې نیول کیدل او په یو ځل کانکور کې ناکام شویو زده کوونکو ته په یوه بل کانکور کې هم دګډون حق ورکول کیده .

| | | |
|---|---|---|
| عزیز اسوده | نجیب الله ساکب | انجینر لطیف |
| وحید صمدزی | حسین هدی | لطیف بهاند |
| شهسوار سنګروال | غلام حسین فعال | اسمعیل فروغی |
| ګل احمد ذهاب | جلال نوراني | محمد سرور انوري |
| سیدجان ملال( په پېښور کې مړشو) | عربشاه مموزی | عایشه جلالي |
| زلمی بابا کوهی | لطیف ناظمي | عبدالغفور امیني |
| غوث زلمی | فوزیه عظیمي | صدیق توخی |
| ناصر طهوري | عبدالوهاب مددي | عزیز روف |
| عبدالله غمخور | نورمراد | امین نوابي |
| پروین ملال | محمدانور وفا | حمید پژمان |
| شکریه رمل | نورمحمد صدیقي | ظاهر طنین |
| شکریه عمر | اسدالله ساپی | عبدالواحدنظري |
| داود فاراني | مرتضی فرحتیار | اقاسعید نسیان |
| نورجهان فاراني | عبدالاحدمیهن یار | |
| شفیقه بشارت | احد ژوند | او ځیني نور |
| پرتونادري | احد پیغام | |
| عبدالحی عابر | شیراحمد پیغام | |
| | محمدحسن میرزی | |

ددې ترڅنګ دولایتي راډیو ګانواو تلویزیونونو ضایعات هم خورا زیات دي .

له سندرغاړو ، نطاقانو اوخبریالانو پرته دراډیوګې شیر ممثلین لکه حاجي محمدکامران،منان ملکری ، ف . فضلي ، ف عبادي ، بایقرااو نور په سلګونو هم فرار او هیوادپرېښودوته اړ شوي دي . دغه راز دافغان فلم کارکوونکي او دسینما مشهور لوبغاړي او نور تخنیکي پرسونل دتیروشلو کلونو په تیره بیا دراوروسته (۱۳۷۱-۱۳۷٦)کلونو په بهیر کې داکسان مهاجرت ته اړشوي دي . له دې کسانو څخه یو شمیر په بیلا بیلو وختونو کې یا پخپل مرګ مړه شوي دي ځیني یې وژل شوي هم دي او نور اکثره یې په بهرنیو هیوادونو کې له خپل هیواده لیرې ژوند کوي .

# اجتماعي - فرهنګي سازمانونه

## ۱ـ دهنرمندانو اتحاديه :

دهنرمندانو اتحاديه چې دافغانستان دهنر دپرمختيا او ودې لپاره او همدارنګه دهنري استعدادونو دغوړيدو ، راټوکيدو او راټولونې لپاره جوړه شوې وه په ۱۳۶۱ل کال کې يې دنقاشۍ په برخه کې ۱۴۰ ، دتياتر په برخه کې ۱۰۲ ، دموسيقۍ په برخه کې ۳۳۱ ، دسينماتوګرافۍ په برخه کې ۲۵۰ ، دمهندسۍ په برخه کې ۱۰۰ تنه غړي درلودل او داټول شمير ۹۰۳ تنه کيږي . تردې وخته په ۱۴ ولايتونو کې د ۱۷۰۰ تنو په شاوخوا کې هنرمندانو دټولنې غړيتوب ترلاسه کړی و.(۱)

تر ۱۳۷۱ ل کال دمخه تقريباً دلسو کلونو په بهير کې دهيواد يو شمير هنرمندان چې په هغو کې ډېر وتلي او نوميالي سندرغاړي هم شامل وو له هيواده بهر شول . خو له ۱۳۷۱ کال څخه تر ۱۳۷۵ ل کاله پورې چې ټول هيواد او په تيره بيا دکابل ښار يوې سراسري ګډوډۍ او انارشۍ نيولی و ، دهنرمندانو زياته برخه دجګړو له ويرې او دنورو تنګسياوو له امله له هيواده ووتله . په همدې پېر کې پر موسيقۍ او دهنر پرځينو نورو برخو يو لړ بنديزونه هم ولګول شول ، دابنديزونه په پيل کې ډير ټينګ وو خو وروسته وروسته دنرمۍ په لورروان شول او ان هغه چاچې لومړی يې پردې ډول سختيو ټينګار کاوه خپله دنرمښت خواته روان شول ، خو پدې پېر کې دهيواد عمومي حالات داسې وو چې دهيچا لپاره دژوند او تنفس امکان نه و نو ځکه خو داکثرو تحصيل کړو افغانانو په خير ددې ډلې زياته برخه هم هيواد پريښودلو ته اړ شوه.

د ۱۳۷۵ ل کال لـوي بدلـون سره دسندرغاړو پرسندريزو پروګرامونو په ځانګړي ډول دموسيقي له وسايلو سره پر ساز او سرود ټينګ بنديز ولګول شو او دسرغړونې په صورت کې ددرنې سزا اعلان هم وشو . د ا وخت‌کوم يو

---

(۱) – دافغانستان کالنی ، کابل ، ۱۳۶۱ ل کال ، ۴۸ ګڼه ،۹۵۰ مخ .

سندرغاړی دهیواد په دننه کې پاتې و او د موسیقی لــه لارې یــې دخپــل ژونــد چارې خروبولې نو هغوی هم مجبور شول چې هیــواد پریــږدي . د ۱۳۷۱-۱۳۷۸ ل کلونو په ځانګړي ډول له ۱۳۷۵ څخه وروسته واټن کې تر بل هر ټولنــیز قشــر څخــه دابرخه ډیره خواره اوناچله شوه .

۲ــ دژورنالستانو ټولنه :

د ۱۳۵۹ ل کال دسنبلې دمیاشتې پر ۲۵ نیټه دخپلې لومړی کنګرې دجوړیدو پــه ترڅ کې چې ۴۰۰ تنو پکې ګډون کړی و ، جوړه شــوه ، پرهمــدې کــال یــې دغــړو شمیر له ۳۷۰ څخه ۷۰۰ تنو ته لوړ شو (۱) تر ۱۳٦٦ کــال پــورې ددې ټولنــې دغــړو شمیر ۱۹۵۱ تنوته ورسیده ، دکابل په ولایت کې ۲۲ څانګې او پــه ١٦ ولایتونــو کــې یې ولایتي شوراګانې درلودلې . د ۱۹۵۱ تنو ژورنالیستانو له جملې څخــه ۱۳۹۳ تنــه دکابل په ښار کې وو چې ۱۰۲۲ تنه یې نارینه او ۳۷۱ تنه یې ښځې وې .

د ۵۵۸ تنو له جملې څخه چې په ولایتي شوراګانو کې تنظیم وو ، ۵۰۲ تنــه نارینــه ژورنالستان او ۵٦ تنه ښحینه ژورنالستانې وې .

په همدې ډول دټولنې له ۱۹۵۱ غړو څخه ۱۲ تنه ډاکتران ، ۷۷ تنه ماسټر، ۷۹۹ تنه لیسانس او نورله لیسانس نه دټیټ تعلیم ښتنان وو . (۲)

تر ۱۳۷۱ ل کال پورې دژورنالستانو دټولنې کــار او فعــالیت دخپلــو امکانــاتو تــر بریده پر مخ روان و ، پدې واټن کې دژورنالســتانو ټولنــې دنــړی دځینــو هیوادونــو دژورنالستانو له ټولنوسره اړیکې ټینګ کړل . دټولنې ځینو غړیو پــه لسګونو نړیوالــو غونډو کې برخه واخیسته او هم ددوی په بلنه له بهر نه ګڼ شمیر بهرني ژورنالســتان ددوی غونډو ته وبلل شول . له ۱۳٦۵ ل کال وروسته دژورنالســتانو ټولنــې لــه خــوا دسباوون په نوم یوه ذوقي مجله هم خپریدله .

د ۱۳۷۱ ل کال په بدلون سره دژورنالستانو ټولنه هم ،لکه دنورو ټولنو پــه شــان زیانمنه شوه ، څو توغندي دټولنې پر ودانۍ ولګیدل او شتمني یې لوټ شوه . غړي یې پخوا په انفرادي ډګه مهاجرت ته اړ شوي وو خوتر دې وروسته یې په ډلــه یــیز ډول دمهاجرت لاره ونیوه او نړۍ په ګوټ ګوټ کې خواره شول . لــه ۱۳۷۱ ش نــه تر ۱۳۷۵ ش پورې تشکیلاتي جوړښت روغ و خو یوازې تشریفاتي بڼه یې درلودلــه ، په واقعیت کې یې نه څومره والی او نه هم څرنګوالی له پخوا سره دپرتلې وړ و. له

---

(۱) - دافغانستان کالنی ، کابل ، ۱۳٦۱ل کال ، ۴۸ ګڼه ، ۹۴۸ مخ .

(۲) - دافغانستان کالنی ، ۱۳٦٦ل کال ، ۴۸ ګڼه ، ٦۱۷ مخ .

۱۳۷۵ ل کال وروسته يې هغه تشکيلاتي جوړښت هم رنګ شـو او اوس يـه دې نامه هلته کومه ټولنه نشته .

### ۳ـ دحقوقپوهانو ټولنه :

دافغانستان دحقوقپوهانو ټولنه دخپـل لومړنـي کنفرانـس پـه تـرڅ کـې چـې د ۱۳٦۴ل کال دسلواغې دمياشتې پر ۲ نيټه دکابل په ښار کې جوړشوی و او ۵۰۰ تنو منتخبو حقوق پوهانو پکې برخه اخيستې وه جوړه شوه .

تګلاره يې تصويب شوه او په فعاليت يې پيل وکړ . وروسته دحقوقپوهـانو ټولنـې خپلې ليکې پراخې کړې او په ۱۳٦٦ ل کال کې يې په تشـکيلاتي برخـه کـې ۲۰۳ تنه حقوق پوهان جذب او دغړيتوب کارتونه يې ورته ورکړل . په مرکز کې يـې پـه ۱۸ ارګانونو کې دحقوقودساتنې ځانګې جوړې کـړې او همدارنـګه پـه ۷ ولايتونـو کې دحقوق پوهانو ټولنې جوړې او په فعاليت يې پيل وکړ . (۱)

تر ۱۳۷۱ ل کاله پورې دحقوق پوهانو ټولنې په مرکز کـې پـه لسـګونو حقوقـي مسايل ځيړلي او ددولت په ځينو ارګانونو کې يې دحقوقي مسايلو او ستونزو دحـل په اړه هغو ته مشورې او لارښوونې کړې دي .

دغه راز يې دبشر دمدنـي ، تعليمـي او نـورو حقوقـو پـه اړه وخـت پـه وخـت حکومت ته خپل غږ رسولی دی . کله چې دبشر پر حقوقـو ددولـت لـه خـوا تـيری شوی اويا له نافذو قوانينو څخه سرغړاوی شـوی نـو دوی پرهغـو اعـتراض کـړی ، داچې دې نيوکو اواعتراضونو دهغه وخت پرحکومت څه اغيز شـيندلی شـو او کـه نه؟ پدې باب دومره ويل کيدای شي چې څه ډير ښکاره اوژور اغيزې ځکه نـه شـو شيندلی چې دا ټولنه خپله هم ددولت له خوا جوړه شوې وه ، خو ديـوې حقوقـي سرچينې او ټولنې په توګه اويا داچې دګڼ شمير حقوق ،هانو ديـو مرکـز پـه تـوګه يې اړتيا زياته محسوسه وه ، دا جرايـي ځواک لـه درلودلـو سره سره يـې مـانيز او حقوقي ځواک هم درلود .

ټولنې له ۱۳۷۱ ل کال وروسته خپل تشکيلات وساتل خـو دې وخـت کـې يـې هيڅ ډول اغيزپاتې نه و ځکه چې په هيواد کې هيڅ ډول حقوقي نظام ټينګ نـه و، ددې ټولنې دفتر هم دکابل په ښار کې څو ځايوته کډه وکړه او غړي يې هم اکـثره خواره واره شول ، زيات شـمير يـې بـهرنيو هيوادونـو تـه لاړل ، لـه ۱۳۷۵ ل کـال وروسته نه ددې ټولنې اونه يې داغيز پته ولګيده .

---

(۱) – دافغانستان کالنی ،کابل ، ۱۳٦٦ل کال،ګڼه ، ٦۳۸-٦۳۹ مخونه.

۴_ دلیکوالو ټولنه :

دافغانستان دلیکوالو ټولنه د ۱۳۵۹ ل کال دتلې پر ۱۲ نیټه دکابل په ښار کې جوړه شوه . ټولنه دیوې ټـګلارې او څانګرېو تشکیلاتو لرونکې وه . چې لاندې برخې یې درلودلې .
- دځوانو لیکوالو انجمن ،دبین المللي اړیکو څانګه ، دتشکیلاتو څانګه ، دپښتونخوا دادبیاتو څانګه ، دکره کتنې څانګه ، دداستان څانګه ، دشعر څانګه .

ټولنې دخپل فعالیت په بهیر کې تر ۱۴۵ تنو زیات علمي ، ادبي او هنري کتابونه چاپ کړل ، دژوندون په نوم یې په دوو ایډیشنو ( پښتواودري) کې څانګړي ادبي ، څیړنیز مجله خپروله او هم یې دقلم په نوم یوه جریده په مرکزکې درلوده . په مرکزکې یې دغړو شمیر سلګونو لیکوالو ته رسیده ، دغه راز یې په ځینو ولایتونو کې دټولنې ولایتي څانګې پرانیستې . د ځوانانو ادبي انجمن دکابل ښار په بیلا بیلو لیسو اوتعلیمي مرکزونو کې خپلې څانګې جوړې کړې وې چې ددوی شمیر هم سلګونو تنو ته رسیده . دلیکوالو انجمن یوه مرکزي شوری لرله.

دلیکوالو ټولنې تر ۱۳۷۱ ل کال پورې دګڼو کتابونو ترڅنګ په لسګونو لویې غونډې ، سیمینارونه او ورې غونډې او مشاعرې جوړې کړې دي . پر ۱۳۷۱ ل کال کې دلیکوالو پر انجمن هم ستر ناورین راغی ، کتابتون او دکتاب ساتنې ځایونه چورشول او ګڼ شمیر غړي یې نورو هیوادوته مهاجر شول . ټولنې له ۱۳۷۱-۱۳۷۵ کال پورې یوازې دژوندون مجلې ۲ ګڼې او دقلم جریدې څوګڼې خپرې کړای شوې ،یو څو ادبي غونډې یې جوړې کړې ، دپخوانیو غړو کمښت او دپانګې نشتوالی ټولنه ورځ په ورځ کمزورې کړه له ۱۳۷۵ کال وروسته دټولنې پخوانی تشکیل له منځه یوړل شو او پرځای یې داطلاعاتو اوکلتور په وزارت کې دشعراوادب امریت په نامه یوه کوچنۍ نوې اداره جوړه شوه ، دې ادارې په تشکیل کې یو تن دامر ، یو تن دشعر ، یو تن دکیسې او یوتن دکره کتنې ، یو تن دځوانو لیکوالو لپاره په پام کې نیول شوي وو یو تن دجریدې دمدیر په حیث او یو تن دچاپ دامر په توګه کار کوي . یعنې ټول تشکیل یې په دې ډول دي :

۱ رسمي مسلکي کارکوونکي ۷ تنه ، شته کارکوونکي ۵ تنه .
۲ رسمي اداري کارکوونکي ۳ تنه ، شته کارکونکي ۲ تنه .
۳ مسلکي اجیرکارکوونکي ۴ تنه ، شته کارکوونکي ۱ تن .
۴ غیرمسلکي اجیرکارکوونکي ۵ تنه ، شته کارکوونکي ۴ تنه " (۱)

اوسنی اداره کې دغړو لیکوالو شمیر په رسمي ډول ثبت شوی نه دی ، کهٔ دشعراوادب اوسنی اداره دلیکوالو ټولنې له پخواني جوړښت سره پرتله کړو نو په تشکیلاتي جوړښت کې په سلوکې تقریباً (۸۰) اوپه خپرنی برخه کې په سلوکې سل کموالی ښیي .

---

(۱) داطلاعاتو او کلتور وزارت دشعر اوادب اداره .

# کابل پوهنتون

کابل پوهنتون دهیواد تر ټولو ستر علمي مرکز دی چې دخپل جوړښت له پیلـه یې تردې وخته پورې هیوادته ګڼ شمیر علمي او مسـلکي کادرونـه وړانـدي کـړي دي . له ۱۳۱۱ ل کال څخه تر ۱۳۶۲ ل کال پورې کابل پوهنتون په ټولـیز ډول ۴۰ زره فارغان ټولنې ته وړاندې کړي دي .لکه څنګه چې دمخه مـو یادونـه وکـړه پـه بیلابیلو پړاوونو کې پر کابل پوهنتون سختې نادودې او تیارې راغلـي او پـه سـوونو استادان یې زنداني شوي ، وژل شوي ، له دندو ګوښه شـوي او یـا مـهاجرت تـه اړ شوي دي . له ۱۳۷۱ ل کال وروسته چې پر کابل پوهنتون کوم نـاورین راغـی هغـه نو دپوهنتون په ټول تاریخ کې بې ساری دی .

دپوهنتون مرکزي کتابتون ، یو موزیم ، یوه ګالري او دڅوارلس ګونو پوهنځیـو کتابتونونه له منځه لاړل . نه یوازې دپوهنتون استادان فرار او مهاجرت تـه اړ شـول، بلکې خپله پوهنتون هم دکابل ښړو بیلا بیلو سیموته مهاجر شو ، په یـوه ځای کـې به یې لا دمه جوړه کړې نه وه چې بل ځای ته به په لیږداړشـو . دهمـدې اړو دوړ په نتیجه کې دکابل پوهنتون ځینې استادان له پوهنتون سـره بـې ارتباطـه شـول . دجګړو په ترځ کې دپوهنتون څو تنه استادان دخپل ژونـد لـه نعمـت نـه هـم بـې برخې شول . پوهنتون په ډیر چټک ډول خپل استادان له لاسه ورکړل . داسـتادانو دوتلو هغه بهیر چې له تیرې لسیزې څخه پیل شوی و ، پدې لسیزه کې لـوړ کچ تـه ورسید . په ځانګړي ډول دهغو استادانو دمهاجرت شمیره خـورا زیاتـه ده چې پـه بهرنیو هیوادونو کې یې لوړې زده کړې کړې وې . دغمـیزې تـر پیـل دمخـه کـابل پوهنتون دنړۍ دیو شمیر هیوادونـو لـه معتبرو پوهنتونـو سـره اړیکـي درلـودل او دکابل پوهنتون اکثره استادان دماسترۍ او دوکتورا لپاره هغو هیوادونو تـه تلـل او له خپلو زده کړو وروسته بیرته راستنیدل . له ۱۳۵۷ کـال وروسـته دا بـهیر څه نـاڅه ټکنی شو خو بیا هم په شپیتمو کلونو کـې یـو شـمیر هغـو هیوادونـو تـه داسـتادانو

دلېږنې بهير دوام درلود چې دوخت له دولت سره يې اړيکي ښه وو . لـه ۱۳۷۱ ل کال وروسته د دنيا له ټولـو پوهنتونـو سـره دکـابل پوهنتـون اړيکـي پـرې شـول . پخواني استادان او يا هغه استادان چې په بهرنيو هيوادونو کې يې لوړې زده کـړې وې شمير يې ورځ په ورځ په کميدو شو . نوي روزل شوي کادرونـه نـه دکيميـت او نه هم دپوهې دځرنګوالي له پلوه دومـره وو چـې دپخوانيـو او تلونکيـو اسـتادانو ځای ډک کړي . له دې امله په راوروسته کلونو کې دپوهنتون اصلـي تشـکيل چـې ۷۵۰ تنه استادان ګڼل کيدل ، هيڅوخت هم پوره نه شو ،ان چې نيمايي ته يې هـم شمير و نه رسيده .

له ۱۳۷۱ ل څخه تر ۱۳۷۵ ل پورې دپوهنتون دټولـو اسـتادانو شـمير ( پـه دې پړاو کې له نويو کادرونو سره سره ) لـه ۳۰۰ تنـو څخـه لوړنـه شـو . لـه ۱۳۷۵ کـال وروسته سره له دې چې بيا هم يو شمير نوي استادان جذب شول ، خو دانفکـاک او مهاجرت له امله دا شمير ۲٦۰ تنو ته راټيټ شو . په دې ټولـو کړکيچونـو او سـتونزمنو شرايطو کې کابل پوهنتون خپل ډير تکړه استادان له لاسه ورکړل چې عمومي شـمير يې سوونوته رسيږي .

په شپېتمو کلونو کې بيا هم په کابل کې (پوهنتون) دپخوانيو استادانو شـمير زيـات و . دې استادانو اکثرو په بهرنيو هيوادونو په ځانګړي ډول په لويديځو هيوادونو کې لـوړې زده کړې کړې وې . دساري په توګه به ۱۳٦۲-۱۳٦۳ کلونه په پام کې ونيسو ، پـدې وخت کې دپوهنځيو پـه ترتيـب داسـتادانو څومـره والی او درتبـې ځرنـګوالی پـه لاندې ډول دي :

| پوهنځی | ليسانس | ماستر | داکتر | پوهاند | پوهنوال | پوهندوی | پوهنمل | پوهنيار | پوهيالی | بهرني استادان |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| حقوق | ۱۸ | ۷ | ۲ | ۰ | ۰ | ۴ | ۳ | ۳ | ۱۷ | ۳ |
| طبعي علوم | ۲۲ | ۲۴ | ۱۲ | ۴ | ۱۰ | ۱۰ | ۸ | ٦ | ۲۰ | ۴ |
| ژبې اوادبيات | ۷٦ | ۳۵ | ۱۰ | ۵ | ۵ | ۱۳ | ۱۷ | ۱۹ | ٦۲ | ۲۴ |
| شرعيات | ۹ | ۱۰ | ۰ | ۲ | ۴ | ۱ | ۳ | ۳ | ٦ | ۰ |
| انجينري | | ۱۴ | ۴ | ۰ | ۳ | ۵ | ۸ | ۵ | ۱۰ | ۰ |
| زراعت | ۱۱ | ۲۵ | ۸ | ۹ | ۳ | ۱۳ | ۸ | ۲ | ۹ | ۲ |

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اقتصاد | ١٠ | ٨ | ٨ | ٣ | ٢ | ٦ | ۴ | ۴ | ٧ | ١٢ |
| فارمسي | ١٦ | ٠ | ١٢ | ٣ | ٦ | ٢ | ٢ | ٣ | ١١ | ٠ |
| وترنري | ١۴ | ١٠ | ٧ | ١ | ٢ | ٣ | ٣ | ٨ | ١۴ | ۴ |
| اجتماعي علوم | ٢٨ | ١١ | ۵ | ۵ | ۵ | ۵ | ٨ | ۵ | ٢٣ | ٩ |
| تعليم وتربيه | ۵ | ١۵ | ۴ | ١ | ١ | ٨ | ۵ | ٧ | ۴ | ٢ |
| خمکپوهنه | ١١ | ١٢ | ۴ | ٣ | ٢ | ٧ | ٧ | ٣ | ١٠ | ٠ (١) |

ددغو استادانو له جملې څخه ډير کم شمير يې پخپل طبعيـي مـرګ او يـا هـم دتقاعد له املـه پوهنتـون څخـه وتلـي دي . هغـه شـمير اسـتادان چـې لويديځـو هيوادونو کې يې لوړې زده کړې کړې وې ، دهغوی په سـلو کـې ٩٠ دوخـت پـه تيريدو او دفرصت په موندلو سره لويديځو هيوادوته پناه وړې ده .

هغواستادانو چې په پخواني شوروي اويا هم دکمونستـي بـلاک پـه ځينـو نـورو هيوادونو کې يې زده کړې کړې وې دهغوی زياته برخه هم يا همغو هيوادو يا هـم دهغوی له لارې لويديځې نړۍ اويا هم نورو هيوادوته پناه وړې ده .

- هغو اسـتادانو چـې پـه کـابل پوهنتـون کـې زده کـړې کـړې دهغوی زياته برخه هم دژوند دنورو مجبوريتونو لـه املـه يـا لـه هيـواد څخـه ووتل او يا يې هم خپله دنده خوشې کړه .

- هغه استادان چې په پورتني لسـت کـې پـر ١٣٦٣ ل کـال پـه پوهنتون کې پر تدريس بوخت وو ، د يوې لسيزې په ترخ کې يې په سـلو کـې ٩٠ تنو کابل پوهنتون پريښود . همداسې که په بيلا بيلـو پړاوونـو کـې وګورو ، وژنې ، نيونې ، ترور ، جبري انفکـاک او نـور پـه پـام کـې ونيـول شـي نـو پـه دوولسيزو کې کابل پوهنتون دټولو تلف شويو ، مهاجر شـويو اسـتادانو شـميرله ٥٠٠-٧٠٠ تنو پورې اټکل کيږي .

---

(١) دکابل پوهنتون کتلاک ، ١٣٦٢- ١٣٦٣ کال ، ١٢٢ مخ

# دافغانستان دعلومو اکاډمي

دافغانستان دعلومو اکاډمي دهېواد ستر څېړنيز او علمي مرکز په توګه دخپل تاسيس له وخته تر ۱۳۷۱ ل کال پورې ديادونې وړ علمي او فرهنګي خدمت کړې دی . په دې کلونو کې په علومو اکاډمۍ کې په سونو پوهانو او څېړونکيو ګڼې علمي پروژې څېړلي او په سوونو عنوانه کتابونه يې چاپ کړي دي . دعلومو اکاډمي په ۱۳۵۹ل کال کې ۲۱۰ تنه علمي غړي درلودل. دوخت په تېرېدو سره لکه دنورو علمي مرکزونو په څېر دعلومو اکاډمي هم زيات زيانونه وزغمل . په کادري برخه کې يې هم زيات تلفات وليدل . دعلومو اکاډمي تلفات په وروستيو لسيزو کې زيات وو داکاډمي کار کوونکيو ديوې انګليزې احصائيې له مخې وايي چې په کادري برخه کې اکاډمي له ۱۳۵۸ – ۱۳۶۵ ل کال پورې په سلو کې دوه ، له ۱۳۶۵- ۱۳۷۱ پورې په سلوکې اته ، له ۱۳۷۱-۱۳۷۵ پورې په سلوکې ۳۵ تنه علمي غړي له لاسه ورکړي دي ، داغړي په دې پړاونو کې يا مهاجرشوي اوياهم له دندې ګوښه شوي دي.له ۱۳۷۵ ل کال وروسته په يو ځايي ډول داکاډمي ۲۴ تنه علمي غړي منفک شوي دي . د ۱۳۷۸ ل کال په پيل کې په مجموعي ډول دعلومو اکاډمي کې ۱۰۰ تنه غړي پاتې وو . پدې موده کې دعلومو اکاډمي څوتنه اکاډميسنان ، کانديد اکاډميسنان ، تر ۱۵ تنو زيات ډاکتران ، ګڼ ماستران او په لسګونو ليسانسه چې بېلابېلې علمي رتبې يې درلودلې مهاجر شوي ، تلف شوي او يا له دندو ګوښه شوي دي .

په دې موده کې يوازې دعلومو اکاډمي دټولنيز علومو مرکز ۵۸ تنه خپل علمي کادرونه او څېړونکي له لاسه ورکړي دي . دژبو او ادبياتو مرکز او همدارنګه دپښتو څېړنو نړيوال مرکز هم له ۵۲ تنو څخه زيات کادرونه له لاسه ورکړي دي . په همدې انډول دعلومو اکاډمي نورو څانګو لکه دلرغونپوهنې مرکز ، دځمکپوهنې مرکز ، داسلامي علومو معاونيت هم خپل ګڼ شمېر کادرونه او څېړونکي له لاسه

ورکړي دي  دیادونې وړ  ده چې هرکله  نوي پړاو دزوړ پړاو ځای  نیولی دی نوله علومو اکاډمی څخه یو شمېر علمــي کادرونـه تللــې دي ، پـرځای یـې ورو ورو نـور کادرونه مقرر شوي دي   که چېرې  په تېرو شلو کلونو کې دعلومـو اکاډمـی دتولـو تلف شویو او مهاجرشویو علمي کادرونو او ځیرونکیو شمېر په پام کې ونیول شي نــو اټکلیز شمېر به یې ۵۰۰ تنو ته نږدې شي

دنوي ريفورم پر اساس ثانوي دوره خلور کلنه شوه او نهم ټولګی ساينس او اجتماعياتو ته دچمتوالي او مسلک ټاکلو لپاره تخصيص شو . ديو شمير عمومي ليسو پر خصوصي ليسو دبدلولو اقدام وشو ، وپتييل شوه چې ښوونکي دليسانس او دهغه نه لوړه زده کړه ولري او ټولې داسې موسسې به ددولت په لاس کې وي او دپوهنې وزارت به ټول روزنيز فعاليتونه پرمخ بيايي .

ريفورم ژمنه کوله چې دولت دټولو افغانانو لپاره دزده کړې دزمينې برابرولو مکلفيت لري او دمعارف اداره به دمرکزيت پر اصل ولاړه وي . په ۱۳۵۳ ل کال کې ۹۰ کليوالي او ۲۵ لومړني ښوونځي نوي جوړ شول ، ۱۱٦ يو معلمه ښوونځي دوه معلمه ته ، ۲۵ دوه معلمه ښوونځي درې معلمه ته او ۹۷ کليوالي ښوونځي ابتدايي ته لوړ شول ؛ دلويانو ۱۹۰ کورسونه په کابل ، ۴۱ په بغلان کې او ۳۴ په کوهدامن کې جوړ شول .

په ۱۳۵۴ ل کال کې دمعارف دنوي ريفورم له مخې ۲۹۴ دشپږو ټولګيو لرونکي لومړني ښوونځي او ۳۳ کليوالي ښوونځي اته ټولګيز شول ، ۹ منځني ښوونځي پر لومړيو ښوونځيو بدل شول ، ديو شمير ښوونځيو پر پروګرامونو باندې دنوي ريفورم له مخې نوی نظر وشو .

جمهوري دولت دروزنيز وچارو دتمويل لپاره په ۱۳۵۳-۱۳۵۵ م کلونو کې لاندې بودجه وټاکله :

| کلونه / دبودجې ډول | ۱۳۵۳ | ۱۳۵۴ | ۱۳۵۵ |
|---|---|---|---|
| عادي | ۹۱۰/۷ | ۱۱۰۰/۰ | ۱۴۳۰/۰ |
| انکشافي | ۷۸/۱ | ۱۳۸/۸ | ۲۳۳/۲ |
| ټول | ۹۸۸/۸ | ۱۲۳۸/۸ | ۱٦٦۳/۲ |

په دې دوره کې دښوونې او روزنې ځينې مهم شاخصونه دادي :

| کلونه / شمير : | ۱۳۵۳ | ۱۳۵۴ | ۱۳۵۵ |
|---|---|---|---|
| ۱- زده کوونکي | ۸۲۱٦۰٦ | ۸۷۲۸۸۰ | ۹۲۸۰۲٦ |
| ۲- ښوونځي | ۴۰۸۵ | ۴۰۹۸ | ۴۰۰٦ |
| الف : کليوالي ښوونځي | ۱۹۰۵ | ۱۸۸۱ | ۱۷۳۵ |
| ب : لومړني ښوونځي | ۱۴٦۸ | ۱۸۲۲ | ۱۸۷۳ |
| ج : ثانوي ښوونځي | ۷۱۲ | ۳۹۲ | ۳۹۸ |
| ۳- دښوونکو شمير : | ۲۴۷۴۵ | ۲۴٦٦۵ | ۲٦٦۷۸ |
| الف : دکليوالي ښوونځيو | ۲۷۴۲ | ۱۴۰۸ | ۲۴۲٦ |
| ب : دلومړنيوښوونځيو | ۱۴۸۷۳ | ۱۵۸۳۲ | ۱۷۹۲۰ |

# پایله او څوورانديزونه

لکه څنګه چې دمخه مو په بیلا بیلو پړاوونو کې له هیواد څخه دمسلکي کادرونو دفرار عوامل وڅیړل او همدارنګه مو د هیواد دننه له اصلي دندو څخه دمسلکي کادرونو دلرې کیدو او ددندو پر پریښودلو خبرې وکړې او هم مو دهغوی دژوندانه ځینې ستونزې وڅیړلې ، دغسې له هیواده بهر هم ډیر تحصیل کړي افغانان دژوند او کار له سختو ستونزو سره مخامخ شوي دي . هرکله چې هرمسلکي شخص له هیواد څخه وتلی نو په بل هیواد کې تر هرڅه لومړی دژوند له ستونزو سره مخامخ شوی دی .

پدې وخت کې دې شخص ایله دومره فکر کولای شوچې څنګه خپل ژوند له وژونکو ستونزو او ګواښونو څخه وژغوري . دمسلک او یا هم دمسلکي کار خبره خو څکه ورسره دومره نه مطرح کیده چې دده مسلکي زده کړې دخپلې ټولنې دارتیا لپاره وې . نه دنورو ټولنو لپاره . تر هغو پورې چې دوی دنورو ټولنو دقانوني اتباعو په توګه منل کیدل او بیا ددوی دمسلک روزنه کیدله ، دی کې نو ډیروخت تیریده. دمسلکي کادر او دهغه دمسلک ترمنځ ډیر زیات ذهني واټن رامنځته کیده. ډیرو کمو مسلکي اشخاصو په پاکستان . ایران او ځینو نورو هیوادو کې په هغو خیریه موسسو کې چې دافغانستان او افغانانو لپاره یې کار کاوه ، خپل مسلکي او یا هم مسلک ته نږدې کارونه پیداکړل . ځینو په همدې موسسو کې دخپل مسلک مخالف او مغایر کار هم له دې کبله مانه چې ژوند یې له ورپیښو خطرونو څخه خوندي شي . د ژوند له ستونزو پرته تحصیل کړي افغانان دهجرت په چاپیریال کې له فکري . سیاسي او نورو ستونزو سره هم مخ وو . دا ستونزې په پاکستان او ایران کې تر نورو زیاتې محسوسې وې . پدې هیوادونو کې پرتحصیل کړو افغانانو دژوند ساحه ډیره تنګه وه ، ان داچې ددوی ژوند یې له سختو خطرونو او ګواښونو سره مخ کړی و. ځینو افغان پوهانو چې دسیاسي ، فکري او نورې بې عدالتی او

دګاونډیو دناوړه نیتونو په ورانـدې څه غبرګون ښوده ، نـو دواکمنو او دهغـو داغیزمنو سیاسي ، پوځي ډلو له خوا په چټکۍ سره وژل کیـدل . دبخښنې نړیـوال سازمان دیو ګزارش له مخې په تیرو څو کلونو کې یـوازې پـه پاکسـتان کـې ۲۱ تنـه افغان پوهان او تحصیل کړي اشخاص ترور شوي دي . پوهـاند دوکتـور بـهاءالدین مجروح ، دوکتور نسیم لودین ، عزیزالرحمن الفـت او نوریـې بیلـګې دي . همدغـه چار او لامل تحصیل کړي افغانان له هجرت نه بل هجرت تـه مجبـور کـړل . ډیـر افغانان دنړۍ په ګوټ ګوټ کې خواره شول ، هر چاچې هر هیواد ته پناه یوړه نـو خپل اصل مسلک ترې پاتې شو . هلته یې له سره نوی ژوند پیل کړ او دنوي کـار او مسلک په لټه کې شول . په پرمختللو هیوادو کې ډیر کم شمیر هغو افغانانو لـه خپـل مسلک سره سمه دنده پیدا کړه چې په همغو هیوادوکې یې لوړې زده کـړې ترسـره کړې وې . لنډه داچې بیلا بیل عوامل ددې سبب شـول چـې ډیـر تحصیـل کـړي افغانان لومړی دخپل هیواد پریښودو ته اړ شول او بیـا پـه نـورو ټولنـو کـې دخپـل مسلک پریښودوته . اوس دهیواد په داخـل کـې دپخـوا پـه انـډول دلوسـتو کسـانو شمیره ډیره راټیټه شوې ده .

دتحصیل کړو افغانانو شمیر څو بیخي ډیر راټیـټ شـوی دی . اوس افغانسـتان کې دمسلکي کادرونو دنشتوالي او کموالي یوه لویـه خـلا احساسـیږي ، لـه کـادري پلوه دټولنې داړتیا پوره کول به یوه هغه لویه ستونزه وي چې راتلونکي حکومتونـه به ورسره مخ وي خودهیواد ددې کادري ضایعې ترڅنګ یـوه دخوشـحالۍ خـبره داده چې دجګړې په بهیر کې چې کوم افغانان بهرنیو هیوادونو تـه لاړل ، دهغـوی دځوان پښت یوې برخې او نوي نسل په همغوټولنـو کـې پـر زده کـړو پیـل وکـړ - ددې زده کړو سټنډرډ او معیار له هغو زده کړو هم پورته و چې پدې تیرو کلونو کـې په جګړه ځپلي افغانستان کې رواني وې . افغانانو پدې ټولنو کـې دوخـت نـوي او عصري علوم زده کړل او په بیلا بیلو علمي څانګو کې یې ځانونه ورسول . داچـې دا افغانان به بیرته خپل هیواد ته ستانه شي او که نـه ؟ هغـه اساسـي پوښتنـه ده چـې سړی ورته دشک او ګمان په سترګه کتلای شي او دافغاني ټولنې دژوند پـه ښیرازۍ او دچارو په سمون پورې تړلې ګڼل کیدای شي .

ځینې هغه افغانان په ځانګړي ډول تحصیل کړي اشخاص چـې دنړۍ پـه بیـلا بیلو هیوادونو کې استوګن شوي او دعمر زیاته برخه یې پخپل هیواد کې تیره کـړې ده، هغوی سره له دې چې په هغو ټولنو کې دژوند دنورو اړتیاوو له پلوه سـوکاله او بسیا دي خوله رواني او ذهني پلوه خپل هیواد او ټولنې پسې ډیر ځوریـږي ، ددې ډول اشخاصو لپاره که په هیواد کې یو څه دتنفس ساحه برابره شي نو زیات امکـان

شته چې بيرته خپل هيوادته را وګرځي . خو ددې ډول تحصيل کړو اشخاصو په باب بايد وويل شي چې دوی دژوند او خپلو علمي تجربو يو اوږد پړاوتير کړی او ازمويلي دی . دوی ته دفزيکي او ذهني کار ډير کم وس او خواک پاتې دی ، داکسان که خپل هيوادته بيرته راهم شي نو دوی به يوازې له رواني پلوه خپل ځانونه ډاډمن کړي ، خو هيواد ته به ډير کار ونه کړای شي . بل اتکل داهم دی چې په نورو ټولنو کې ددوی دژوند اقتصادي اودهوسايني کچه تر هغه وخته هم زياته ږچته شوه چې دوی پخوا پخپله ټولنه کې درلوده .دا امکان هم لرې ښکاري چې افغاني ټولنه دې له اقتصادي پلوه ددوی په عمر کې هغه کچ او معيارته ورسيږي چې دوی پکې اوس اوسيږي . کله چې دوی په اټکليز ډول . خپل هيوادته راستنيږي نو کيدای شي داقتصادي کچې دټيټوالي او درواني ډاډ په يوه حايله فضا کې ژوندوکړي ، ددې ټولو ستونزو ديادونې ترځنګ اصلي خبره همغه ددوی دعمر خبره ده چې ددوی عمر نور څومره اټکل کيدای شي او انسان په څومره عمر کې دکار کولو جوګه وي ؟

دويمه ډله هغه افغانان دي چې دخپل عمر په نيمايي برخه کې يې هيواد پرې ايښی دی . ځينو يې لوړ تحصيل کړی او له ځينو نيمګړی پاتې شوی ، داډول اشخاص هم کيدای شي له خپل ولس او هيواد سره ځپله مينه وپالي او دحالاتو په رغون او سمون سره بيرته راتګ ته ليواله شي ، خو دوی به هم په آساني سره دهغو ټولنو نورمال او متمدن ژوند – چې اوس پکې اوسيږي – يوازې دخپل احساس قرباني نه کړي او ژر به هيوادته ستانه نه شي . يوازې احساس نه شي کولای دژوند چارې خروبې کړي ، تر هغه چې دژوند رغنده توکي دافغاني ټولنې ژوند سوکاله او هوسانه کړي. ولولې ، احساس او شعارونه به ډير کار ورنه کړای شي . دويمې ډلې ته له دې امله دراتګ هيله کيدای شي چې دوی لا دعمر په نيمايي واتن کې دي . که چيرې په دې ترخ کې لوی خدای (ج) زموږ په ولس درحمت باران واوروي او دسوکالۍ پرښتې په خپلو وزرونو کې زموږ ولس ته مينه او سوکاله ژوند ډالۍ کړي نو بيا ددې اټکل کيدای شي چې يو شمير تللي افغانان بيرته خپل هيوادته راستانه شي .

دريمه ډله هغه افغانان دي چې دژوند لږه برخه يې په افغانستان کې تيره کړې او زياته برخه يې په نورو هيوادو کې . ددې ډول افغانانو ملي احساس او ولوله دپورتنيو دوو ډلو په انډول لږ شان کمزورې ځکه بريښي ، چې دوی د همغو ټولنو رنګ اخيستی او اخلي يې . زده کړې ، فرهنګ ، عادتونه او نوريې ضرور دهمغو

محصول گرځي . له خپلو افغان کورنيو سره دژوند ، تماس او اړيکو له امله په يکې يو څه افغاني ځانګړنې هم راوتوکيږي خونه دبشپړو افغانانو په شان .

په حقيقت کې ددې درې واړو کتګوريو دتګ له امله افغاني ټولنې زيات زيان زغملی دی . ددې زيانونو ترڅنګ ددې اشخاصو تګ زموږ ټولنې تـه يـو څه کټې هم رسولې ، او رسوي يې او دنورو ګټو اټکل هم کيدای شي .

هغه افغانان چې بهرنيو او پرمختلليو هيوادوته تللي او اقتصادي ژوند يې دافغانستان په اندول ډير ښيرازه دی هلته دکار او استوګنې لـه کبلـه زياتې پيسې ترلاسه کوي ، داپيسې نه يوازې دخپل ژوند دخړوبولو لپاره لګوي . بلکې يود دياد وړ برخه يې دلته خپلو کورنيو ، خپلوانو او دوستانو ته هم راليږي او پدې ډول ددوی دژوند دستونزو په آسانی کې برخه اخلي .

افغانان هره مياشت له لويديځ هيوادونو څخه په اټکليز ډول په مليونونو ډالره راليږي چې په پيښور او دافغانستان په داخل کې پرې دژوند چارې سمباليږي .

دژوند دچارو ترڅنګ په بهرکې ميشته افغانانو پـه علمي برخـه کـې هـم زيات خدمتونه او هڅې ترسره کړي او تـر سره کـوي يـې . دوی نه يـوازې دپوهې او عصري علومو په نويو څانګو کې زده کړې کوي ،بلکې دعلمي ، ادبي ، تاريخي کتابونو پرليکلو او چاپ هم مصروف دي . دغه راز دهيواد دنورو پوهانو او ليکوالو دآثارو په چاپ کې هم زياته ونډه اخلي . که يوازې پـه وروستيو پنځوکلونو کـې دعلمي ، ادبي او تاريخي کتابونو دچاپ بـهير تـه پـام وکـړو نـو پـه دې تـرخ کـې دهمدغو لويديځ ميشتو افغانانو په مالي مرستو او هڅو په سلګونو عنوانه کتابونه چې دځينيو لګونو ټوکونه رسيږي چاپ شوي دي . داټکل لـه مخې دا لـه ... کال وروسته دافغانستان دجنجاليزو حکومتونو دټول فرهنګي کار دوه سوه برابره کار ټکل کيږي يعنې په بهر کې ميشتو افغانانو دخپل هيواد فرهنګ تـه تروروستيو حکومتونو په سوونو ځله زيات ګټورکار کړی دی . که دحکومتونو له خوا دهيواد کلتور ته دور اړول شوي زيان جاج په پام کې ونيسو نو بيا خو هيڅ سره پرتله کيدلای نشي .

دا افغانان هلته له نړيوال تمدن او پرمختګ سره بلد شول او اوس عملاً خپله هم يکې برخه اخلي ، نوکه چيرې يو ملي حکومت جوړ شي او ټولنه دسوکالی پـ... لور روانه شي او ددوی دراتګ امکانات برابر شي نو دا به دافغانستان ديـو ريزرف کادر په توګه کارورکړي . اوس دا پوښتنه رامنځته کيږي چې آيا ددې امکانات بـ... پيدا شي چې دا افغانان بيرته خپل هيواد ته راستانه شي ؟ دا امکانات بـه کـوم وخ... او په څه ډول به وي ؟ په دې باب سړی ويلای شي چې که چيرې په افغانستان کـ...

په رښتیا هم یوملي اومترقي حکومت جوړشي چې اصلي موخه او هدف یې یوازې او یوازې دهیواد پرمختیا او دخلکو هوساینه وي نو بیا خو کیدای شي دهرې ستونزې حل ولټول شي .

ملي حکومت باید تر هر څه دمخه ستونزه تشخیص او بیا یې دعلاج په لټه کې شي .

که چیرې یو حکومت وغواړي چې دا افغانان بیرته خپل هیواد ستانه شي نو تر هر څه دمخه باید یوه سالمه ذهني فضا رامنځته کړي . فکري اختناق ، سیاسي زور واکي او نورې ربړې چې دټولنې دلوستي قشر دفرار سبب شوي له منځه یوسي .

مسلکي او علمي معیار په پام کې ونیول شي ( کار دکار اهل ) ته خبره عملي شي . پوهنیز کار خپل مادي ملاتړ تر لاسه کړي او مانیز ارزښتونه بیرته پرځای شي .

هغه افغانان چې په نورو هیوادونو کې اوسیږي هغوته دافغانستان دنورو خلکو په شان دهیواد دبرخلیک په ټاکلو کې برخه ورکړ شي او هغوی په هیوادنیو چارو کې برخمن وګڼل شي . داکاربه له خپل هیواد سره دهغوی په دایمې ذهني پیوستون کې لا مرسته وکړي او دلرې والي احساس به یې له منځه لاړشي .

په بهر کې میشته افغانانو ته دټګ راټګ اسانتیاوې برابرې شي . دوی وهڅول شي چې له خپلې خوښې سره سم ، دهیواد په اقتصادي او فرهنګي رغونه کې برخه واخلي . هغو افغانانو چې په بهر کې یې لوړې زده کړې کړي ،دنویو عصري علومو په برکت کولای شي چې دهیواد په فرهنګي او اقتصادي رغونه کې ... ونډه واخلي . هغه ذهني دیوالونه او ستونزې چې پخوا دټولنې دبېلا بېلو قشرونو تر منځ رامنځته شوي وو هغه باید له منځه لاړ شي ، یوه دمینې ... رامنځه شي .




هغه افغانان چې دبهرنیو هیوادونو تابعیت یې منلی ، خپل هیواد کې باید ورته دموقتي او یا دایمي استوګنې په برخه کې اسانتیاوې رامنځته شي

که ملي حکومت له هغو هیوادونو سره چې افغانان په کې میشته دي داسې یوه مفاهمه وکړای شي چې کوم مادي امتیاز چې دغه هیوادونه یې اوس افغانانو ته ورکوي که دا هغوی ته افغانستان ته دبیرته ستنیدنې په صورت کې هم ورکړي نو را کار به هم دځینو هیوادوالو په راستنیدنه کې اغیزمن واقع شي .

ورځ په ورځ تخنیکي پرمختګونه زیاتیږي ، ملي حکومت کولای شي دنویو تخنیکي وسایلو په واسطه په بهر کې میشته افغانانو سره خپل تماس ټینګ کړي او له دې لارې دهغو راټګ او یا هم دمرستو د جلبولو زمینه برابره کړي .

Serial No: 8

# Causes of Afghan brain-drain

By

M. Ismail Yoon

Published




By

Afghanistan Study Center (ASC)

Peshawar 1999
Copies 2000

ملي حکومت کولای شي دافغانستان دسفارتونو لارې پــه هغــو هیــوادو کـې لـه میشتو افغانانو سره همیشنی تماس ټینګ کړي ، کلتــوري غونـډې جـوړې او نـورې ملي هڅې وکړي ، دابه له خپل هیواد سره دهغو افغانانو په روانــي پیوسـتون کـې ډیره مرسته وکړي او دبیرته راستنیدو روحیه به پکې پیاوړي کـړي او داسـې یـو لـړ نورې لارې چارې .

خو په اوس وخت کې ددې ډول یادونو عملي کیدل ناشوني ښکـاري . دملـي حکومت جوړیدو هیله لا ډیره ګړندۍ او ځلنـده نـه ښکـاري . ټولنـیز ، اقتصـادي ، پوځـي کړکیچ لا اوس هم دوام لري او اوس هم په زرګونو افغانان لکه دسـیلاب پـه شان نورو هیوادونه د تلو په حال کې دي ، چې ګن شمیر یې تحصیل کړي افغانـان دي .

که دالړۍ په همداسي چټکۍ سره دوام ومومي نو په راتلونکو څوکلونو کې بـه دیوې ادارې په سر هم دلوړو زده کړو خاوند پاتې نه شي ، نوکه اوسني حکومتونـه دنورو افغانانو درابللو وس نه لري نو دومره خودې وکړي چې دولس دځوند په ټولـو برخو کې دې وچ ذهني اختناق ختم اویو څه نرمښت دې راولي چې هـرچاتـه یـو څه دژوند او تنفس سـاحهبرابـره او پراخـه شــي او پـه دې ډول دې بـهر تـه دنـورو تلونکیو افغانانو مخه ونیول شي .



| | | | |
|---|---|---|---|
| ج : دثانوي ښوونځيو | ۷۱۷٦ | ۷۴۲۵ | ٦۳۲۱ |
| ۴- پريوه ښوونکي دزده کوونکو شمير | ۳۳/۲۰ | ۳۵/۳۸ | ۳۴/۱۷ |
| ۵- له دولسمو ټولګيوځخه فارغان | ۱۲۸۴۸ | ۱۳۸۴۵ | ۱۴۵٦۲ |

دثانوي ښوونځيو دشمير په هکله دتوضيح وړده چې په ۱۳۵۳ ل کال کې ۱۹٦، په ۱۳۵۴ ل کال کې ۱۹۷ او په ۱۳۵۵ ل کال کې ۱۹۹ منځني ښوونځي ليسوته لوړ شوي دي . (۱)

د (۱۹۷۵- ۱۹۷٦ ع ) کال ديوې احصائيې له مخې په افغانستان کې ۱۹۱۳ کليوالي ښوونځي ، ۱۵۱۷ لومړني ښوونځي ، ۵۱۲ منځني ښوونځي ، ۱۹۷ ليسې ، ۱۷ مسلکي ښوونځي ، ۱۰ دارالمعلمينه ، ۱۹ ديني مدرسې او دلوړوزده کړو ۱۴ موسسې موجودې وې (۲) ديوې بلې احصائيې له مخې په ۱۹۷۷ م کال کې يوازې ددارالمعلمينونو شمير ۱۵ ته لوړ شو .

دجمهوريت په دوره کې دلوړو زده کړو وزارت بودجه په لاندې ډول ټاکل شوې وه :

| کلونه / دبودجې ډول : | ۱۳۵۳ | ۱۳۵۴ | ۱۳۵۵ |
|---|---|---|---|
| عادي : | ۲۱۰/۴ | ۲۱٦/۴ | ۲۴۹/۰ |
| انکشافي : | ٦/۴ | ۷۲/[illegible] | ۲۴۹/۷ |
| ټوله : | ۲۱٦/۸ | ۲۸۹/۱ | ۳۲۵/۷ ميليونه افغانۍ . |

دوهم پنځه کلن پلان دپوهنتون او پولي تخنيک لپاره ۹۴۰ مليونه افغانۍ ټاکلې وې .

په ۱۳۵۳ ل کال کې دکابل پوهنتون ټول محصلين ۷۷۹۸ تنه وو ، چې له دې جملې ځخه ۷۴۲ تنه ښځوني وې او ٦۳۹ تنو استادانو درس ورکاوه .

په ۱۳۵۰ – ۱۳۵۲ ل کلونو کې دپوهنتون او محصلينو شميره :

| کلونه / ځانګې : | ۱۳۵۰ | ۱۳۵۱ | ۱۳۵۲ |
|---|---|---|---|
| طب : | ۱۱۷۳ | ۱۲۰۵ | ۱۱۲۳ |
| کرنه : | ۵۵۳ | ۷۳۵ | ٦۳۵ |
| ساينس : | ۲۳۲۱ | ۲۵۹۱ | ۲۰۸۳ |
| اجتماعي علوم : | ۲۹٦۳ | ۳۳۲۴ | ۳۵۱۹ |
| دارالمعلمينونه : | ۱۴۰۵ | ۱۹٦۴ | ۱۸۱۵ |
| ټول : | ۸۴۱۵ | ۹۸۱۷ | ۹۱۷۵ |

---

(۱) حبيب الله رفيع ، په افغانستان کې دعصري ښوونې اوروزنې پيل او پرمختيا، پېښور ، ۱۳۷۷ ل کال ۱۰۸- ۱۱۰ مخونه .

(۲) شباهنګ ، بازسازي نهادهای فرهنګي افغانستان ، دازادافغانستان دليکوالوټولنه، پېښور، ۱۳۷٦ کال ، ۷، ۸ مخ .

همداوخت په پوهنتون کې دکورنيو او بهرنيو استادانو شمير په لاندې ډول و:

| کلونه / شمير : | ۱۳۵۰ | ۱۳۵۱ | ۱۳۵۲ |
|---|---|---|---|
| کورني استادان : | ۹۱۰ | ۸۱٦ | ۷۲۰ |
| بهرني استادان : | ۱۹۸ | ۱۷٦ | ۱۷۱ |
| ټول : | ۱۱۰۸ | ۹۹۲ | ۸۹٦ |

په دې شمير کې دننگرهار پوهنتون ، دصنعت داداري انستيتوت ، پولي تخنيک او عالي دارالمعلمين هم شامل دي .

دجمهوريت په دوره کې دپوهنتون دمحصلينوشميره په لاندې ډول ده :

په زده کړو بوخت :

| کلونه / پوهنځي | ۱۳۵۳ | ۱۳۵۴ | ۱۳۵۵ |
|---|---|---|---|
| دکابل طب : | ۷۴۴ | ۸۳۰ | ۹۸۷ |
| حقوق : | ۵٦۵ | ۵۲۴ | ۴۴۷ |
| اقتصاد: | ۴۷۱ | ۵۹۵ | ۷۴۷ |
| ادبيات : | ۱۵۳٦ | ۱۰۲۰ | ۹۷٦ |
| شرعيات : | ۵۷۱ | ۲۷٦ | ۳۲۹ |
| انجنيري : | ۵۸۱ | ٦۸۱ | ۷۵۳ |
| کرنه : | ٦۸۲ | ٦۴۸ | ۷۵٦ |
| علوم : | ۹۴۵ | ۱۰۹۷ | ۱۱۰۱ |
| فارمسي : | ۲۲۳ | ۲۵۴ | ۲۸۸ |
| وترنري : | ۱۰۲ | ۱۹۸ | ۲۹٦ |
| پوليتخنيک : | ۱۱۱۷ | ۱۱٦۸ | ۱۱۵۸ |
| دننگرهار طب : | ۴۴۳ | ۵۴۳ | ٦۰۱ |
| ټول : | ۷٦۸۰ | ۷۸۲۴ | ۸۴۵٦ |

فارغان :

| کلونه / شمير : | ۱۳۵۳ | ۱۳۵۴ | ۱۳۵۵ |
|---|---|---|---|
| دکابل طب : | ۸۰ | ۵۱ | ۵۵ |
| حقوق : | ۱۷۱ | ۱۲٦ | ۵۵ |
| اقتصاد: | ٦۸ | ٦۷ | ۴۱ |
| ادبيات : | ۳۵۵ | ۲۹۷ | ۳۰۲ |
| شرعيات : | ۴٦ | ۲۸ | ٦٦ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| انجنيري : | ۴۲ | ۶۸ | ۶۹ |
| کرنه : | ۹۱ | ۵۹ | ۸۵ |
| علوم : | ۲۶۰ | ۲۳۰ | ۱۸۷ |
| فارمسي : | ۰ | ۰ | ۰ |
| وترنري : | | | |
| پولیتخنیک : | ۱۰۹ | ۱۴۸ | ۱۹۳ |
| دننگرهار طب : | ۳۸ | ۵۹ | ۸۹ |
| ټول : | ۱۳۸۸. | ۱۱۵۷ | ۱۱۹۴ (۱) |

تر ۱۳۵۷ ل کال دمخه افغانستان په چټکۍ سره دعلمي کادرونو له پلوه موجوده خلا ډکوله ، ګڼ شمیر محصلین دلوړو زده کړو لپاره دنړۍ بیلا بیلو هیوادونو ته لیږل شوي وو .افغانستان دنړۍ له ګڼو هیوادونو سره دپلوماتیک اړیکي درلودل ، نو ځکه خو دلوړو زده کړو په برخه کې هم دهغو هیوادونو مرسته او ملګرتوب څرګندیده . دهیواد دلوړو زده کړو موسسو په تیره بیا کابل پوهنتون دنړۍ دهیوادونو له ځینو نامتو پوهنتونونو سره علمي اودتوامیت اړیکي درلودل ، هرکال يې دپوهنتون استادان دنور لوړ تعلیم لپاره بهرنیو هیوادونو ته لیږل . دکابل پوهنتون دهغه وخت استادانو دتحصیل ددرجې او ځای له څرنګوالي نه څرګندیږي چې دپوهنتون داستادانو له سلو څخه تقریباً اتیا تنو له بهرنیو هیوادونو څخه خپلې ماسترۍ او دوکتوراوې راوړې دي او ځینو تر ماسترۍ ټیټ تحصیل هم په بهر کې کړی دی . هغه وخت په هیواد کې دټولنیز ژوند کچه هم دومره لوړه وه چې دنړۍ دیو شمیر هیوادونو په اندول زموږ هیواد دتحصیل کړیو اشخاصو لپاره یوه نسبتاً سوکاله ټولنه ګڼل کیده . تعلیم او تحصیل خپل مادي ملاتړ او مادي ارزښت درلود ، دهر چا ټولنیز موقف څرګند و ، هر چا خپله ټولنه کې خپل ځان احساس کولای شو . ځکه خو اکثرو اوان ټولو افغانانو چې په دې موده کې په بهر کې لوړې زده کړې څوک هم په هغو هیوادو کې پاتې شوي نه دي او بیرته خپل هیواد ته راستانه شوي او په دندو يې پیل کړی دی . هغه وخت دافغانستان اقتصادي کچه دومره وه چې یو تحصیل کړي شخص او په تیره بیا دپوهنتون استاد پرې له هر پلوه خپل ژوند خروب کړی وای . دکابل پوهنتون یو

---

(۱) هماغه اثر ، ۱۱۶- ۱۱۷ مخونه .

استاد دهغه وخت داستادانو اقتصادي حالت په باب وايي : " هغه وخت کې يې مور ته دومره معاش راکاوه او په افغانيو کې دومره قوت موجود و چې ما دخپل معاش او حق الزحمو له پيسونه دومره سپما وکړه چې دپروان په کارته کې مې پرې يو پوخ دوه منزله کور جوړ کړ ".

دعلمي کادرونو دتقرر په برخه کې هم له انصافه کار اخيستل کيده ، له ځينو مهمو حساسو سياسي او اداري پوستونو پرته په مسلکي ، تخنيکي او علمي پوستونو کې اکثره دخپل مسلک خاوندان مقررول.

له هيواد څخه دمسلکي کادرونو فرار هغه هم په ډله ييز ډول هيڅ په خوب او خيال کې هم نه راتنه . په ټوليز ډول د ا د وره افغانستان دعلمي کادرونو دروزنې ، پالنې او پخپلو ځانګوکي دګمارنې ډيره ښه دوره ګڼل کيداى شي ، ضايعات هيڅ نه وو او دنويو کادرونو دروزنې کار هم په چټکۍ سره روان و.



پوهنیار محمداسمعیل یون

# له افغانستان نه دمسلکي
# کادرونود فرارعوامل



۱۳۷۸

# له افغانستان نه دمسلکي کادرونو دفرار عوامل





لیکوال

پوهنیار محمد اسمعیل یون



۱۳۷۸



## دکتاب پیژندنه :


* - دکتاب نوم : له افغانستان نه دمسلکي کادرونو دفرار عوامل

* - لیکوال : پوهنیار محمد اسمعیل یون

* - دچاپ کال : ۱۳۷۸ - ۱۹۹۹م

* - خپرووونکی : دافغانستان دمطالعاتو مرکز

* - دچاپ ځای : دانش کتاب پلورنځی ـ پیښور

* - مهتمم او کمپوزر : محمدظاهر بابری

# فهرست